# ترون

دَ

ډاکټر اقبال نسيم خټک

او

ډاکټر راج ولي شاه خټک

دَ درنو نامو سره
چې زهٔ ئې په شاګردۍ
وياړم

دریاب

د کتاب نوم ــــــــــ غزلې بڼې

ليکوال ــــــــــ علي خېل درياب

د چاپ کال ــــــــــ ۲۰۰۳ء

شمېر ــــــــــ پنځه سوه (۵۰۰)

کتابت ــــــــــ ارشاد خان "پښتو اکېډمي پېښور"

بيعه ــــــــــ شل روپۍ




## درکونه



* دفتر همېشه پښتو ادبي ټولنه (رجسټرډ) آمان دره ملاکنډ ایجنسي
* درياب برادرز مېن بازار بټخېله ملاکنډ ايجنسي
* ګنج ايکسرې اېنډ کلينيکل ليبارټري بېرون ګنج دروازه پېښور
* جميل برادرز بکسېلرز بټخېله
* حماد بک سنټر امير افضل خان پلازه - مېن بازار بټخېله

# دا انتخاب

زما خوا خوږي، کشر او په پښتو مئين خيام يوسفزي زما د شاعرۍ د هغې برخې نه کړے دے. کومه چې په دې نسل دې وختونو اړتيا لري. هغه په دې لړکښې ښځې د خپلې مرضۍ، مذاق او طبعې سره سم د کلام چوڼ کړے دے. ځکه نو دا انتخاب څه کلا مونه داسې هم لري. چې هغې کښې شوخي هم شته، تنافر هم او غرابت هم. که چرته ما کولې شوې نو دغه رنګ کلا مونه به ترې مالوې کړي وو. خو د خيام يوسفزي په خيال چې ليکلې شوې دي نو اوس ئې په خپريدو کښې څه باک دے.

په هر طور خيام زلمے دے. د تودو احساساتو او جذباتو ښتن دے. مئين دے. او د حُسن پرست دے. په غزل بين شوے دے. چې څهٔ ئې زړهٔ او نظر را ښکودے دے. هغه ئې راغونډ کړي دي. او دا دي ستاسو تر لاسو ئې را اورسوُل.

"غزل بين" کښې څهٔ دي. دوه کم شپږ نيمې شلې غزلې يعني يو کم اتهٔ سوه شعرونه. هسې خو په غزل کښې بيت دوه د انتخاب وي. ولې زما په دې ټول غزل بين کښې که چرته يو بيت هم د انتخاب اوګرځيد. نو دا به زما ښکمرغي وي.

زهٔ داده يم چې ما خپلو شعرونو کښې سيمئين تورې ښکار راوستي دي. کوم چې به د نورو سيمو د لوستونکو دپاره

نا اشنا ضرور وي۔ ولې يو اړخ ته که دغه توروونه ډېره
کول ما د پاره ناشوني وو۔ نو بل اړخ ته مې خوندي کول ما د
پښتو ژبې د پاره يوه ارزښتناکه اثاثه هم ګڼله۔ دغه رنګ
"غزل بڼ" کښې ما شعوري کوشش کړے دے۔ چې په ځنو
ځايونو کښې هغه صيغې را مخې کړم۔ کومې چې زموږ په سيمه
مستعمل دي۔ اګر چې د ګرامر قاعدو په خلاف هم دي ولې د
سيمې د استعمال د دغه اسانۍ نه فائده نه اخستل ما ته د
کفرانِ نعمت نه کم نه ښکارېده۔ ځکه نو زه معترف يم چې
د دغې بدعت جُرم ما قصداً او ارادتاً کړے دے۔

په آخر کښې زه د هغه ټولو مېنتو مننه په ځائے
راوړم۔ چې د دې کتاب د خپرولو په خپر کښې ئې د خپلې
برخې څه نه څه کمکې غورځولې ده۔

علي خېل درياب
امان دره۔ (شنګی)

# باور

ګرانه دریابه وروره!

فکر ونه دې نور هم سند رېز شه

زه نه پوهېږم چې ستا د شاعرۍ د لوستونه پس د خپلو جذبو اظهار له څنګه لفظونه ورکړم. څکه چې ستا د خوانو او تودو احساساتو ارخونه بنه ډېر دي او زه ګمان کوم چې ستا په څنې څنې شعرونو کښې لاشعوري طور داسې خوندور ترکیبونه ځاۓ شوي دي چې ته به پرې ځپله هم نه يې پوهه شوے. دغه د آمد هغه کیفیت وي چې بیا ورو ستو د شاعر د عظمت اعتراف له اوږه ورکوي.

وروره! زه نه خو شاعر يم او نه د نثر لیکلو په رموز پوهېږم. خو لکه ستا د حالاتو په دغه تود تنور کښې سوزم لکه ستا یو حساس زړه لرم. څکه نو د خپل احساس د تکور دپاره لفظونه ترتیب کړم - بیا د يارانو خوښه چې څه ورته وائي او زه د حمزه بابا د دغه فکر مطابق په تماشه ولاړ یم. چې!

Courtesy www.pdfbooksfree.pk



ـه چې خپل غزل د چانه واورم حمزه
وارم چې چا هسې وېنا کړې ده

ولې چې ستا شاعرۍ مې اولوسته نو د ملاکنډ د کلورینې
خاورې پټولې خوشبويانې مې ذهن ته راغلې. ماداسې محسوسه
کړه لکه چې د نعيم راتې هاغه خوب رښتيا شوے وي چې

ـه ځم د ملاکنډ د سره زېړے په خيبر کوم
شو د کوهستان په دنګو غرونو کښې زلے غزل

د غزل د زلميتوب دغه ټول کيفيات، ټول جذبات ستا په
يک کښې ښکاره او جوت دي. ځکه نو ستا دا دعوی په ځپل
ځائے وزن لري. چې: ـه

دا زما د سيمې خاوره
رنګ زما په شاعرۍ شوه

ملاکنډ د پښتون تاريخ په حواله لکه د خيبر ځيل ارزښت
لري. دې لارې هم په ځپله لمن کښې د پښتون قام د عظمت
ډېر خاپونه خوندي ساتلي دي. او ددغه خاورې اثر ستا
په شعر کښې يقيناً چې د ستايښنې وړ دے.

ـه غېږه د جانان ئې رانه هېره کړه
ځومره دې نازکه پښتو غېږ ده

درياب ورو ره!

هم دغه پښتو ده. هم دغه لاشعوري طور د يو والي
احساس دے. چې زمونږ تر مېنځه ئې د ترون رشتې ټينګې

ساتلي دي. ولې بدبختي دغه ده. چې نن پښتون "سر" نه لري

هر څوک د خپل غرض په خاطر د پښتو او پښتونولۍ تپه کوي

خو چې کله خبره عمل ته راشي نو بيا په دې موجوده حالاتو کښې

هرڅوا اوليدل چې دلته څوک د پښتون قام په درد زړه خوري؟

هم دا پروني خبره ده چې په افغانستان کښې د استعماري قوتونو

د لاسه اور تود شو. پښتانه چې اوورلې شول. نو قام

پرستانو څه اوکړل؟ له د طالبانو سره د دوی "نظرياتي

اختلاف" وو. نو دغه خاوره خو د ابدالي خاوره وه. دغه

خاوره خو د "ميرويس بابا" خاوره وه. نو دې قام پرستو

داغږ هم اونکړو چې ددې پښتني خاورې دا ژوبل سينه

د کوم جرم سزا ده؟ زه منم چې په دغه حالاتو کښې تا هم

لکه زما پټ پټ ژړلي دي. تا هم لکه زما د قام پرستو په رويو

ټکونه کړي دي. او شاعرۍ دې دغه جذبو له ډېر مناسب

او ښکلي لفظونه ورکړي دي.

ـه ملالۍ غريبه مړه ده
ګنې بيا کرم ميوند دے

دغه شعر دې هم د زړه خبره کوي

ـه بيا پرې "شين سترګي" ورووي اوروونه
بيا د ميوند نه ملالۍ غواړم

هاغه د بارودو په لوګو کښې د پښتو نغوا د. چې

لمبه لمبه اختر ماته هم ياد دے او تا ته هم.

ے مونږ رواياتو ته دوام بخښلے
مونږ په بمونو کښې اختر کړے دے
دریابه وروره!

دا ټوله بې حسي په دې وجه ده چې - مونږ خپل قامي وحدت بايللے دے . فرنګي چې په کال ۱۸۹۳ کښې زمونږ په سينه د ډيورنډ کومې کرښې راښکلې دي - هغې مونږ د يو بل نه پردي کړي يو - زمونږ نه يې د اجتماعيت احساس تروړلے دے . مونږ د يوې ژبې ويونکي ، د يو نيکه او دد ، د يوې خاورې خاوندان د يو بل نه تالا والا پراته يو . زمونږ د ټولې بربادۍ سبب د ملي يو والي نشتوالے دے . په دې ته هم بنه پوهيږے او نکه ستا نور حساس فکر ونه هم :

ے پښتانه د غمې خواره واره دي
لکه د هاره چې غمې مات شي

*

کانړے هر يو کس په تنه راښے دے
دلته کښې په چاپورې سر چړه دے

*

چې تبرې يې چې په بره نور قامونه
ورځ چې تبرې يې پښتانه لويږي

پښتانهٔ خو لا دَ ځانه وتي نهٔ دي

نور قامونه دَ اسمانه په وتو دي

منم چې تهٔ پښتون يې او دَ پښتون قام دَ شملې هسکوالے دې
ارمان دے . دا ارمان به يو ځل خوامخواه پوره کيږي ځکه چې
پرون چې په پښتون قام کښې دَ علم او پوهې کوم نشتوالے وو.
هغه اوس رو رو له مينځه ځي . او چې هر زلمے لکه ستا داسې
فکر اودري نو بيا دَ ځان کټنې منزل دومره لرې نهٔ دے .
قامي يووالے ، قامي وحدت دَ جديد علومو دَ زده کړې په
بدل کښې حاصليدے شي . ځکه چې نن دَ مقابلې دور دے
دَ سائنس او ټيکنالوجي دَ زده کړې دَ مقابلې دور - حالات داسې
زيږي راوړي چې په دغه تورتم کښې به دَ اميدونو ډيوه
ارومرو روښانه کيږي .

دريابه ستا دَ فکر رڼايي پکښې خوره شوه

څنې زمونږ دا کلےخو تياره پاتې کيدو

دريابه وروره !

ستا دَ جذبو په اظهار کښې دَ رومانيت ټول رنګونه هم
ستا دَ زړهٔ خبرې کوي . او چې کوم زلمے دَ ملاکنډ په خاوره
خرپوسې او کړي رالوے شي . زلمے شي او بياد نوکرۍ په
تړون دَ "چکېسر" غونډۍ واوړينو څوکو په لمن کښې دَ
رنګونو او ښائستونو تماشې اوکړي نو ځپيله شاعرۍ کښې
به خوامخواه دَ "واوړينو شپو" ذکر کوي . زهٔ نهٔ پوهيږم

چې د دغه ښځو شپو سره ستا کوم یادونه ترلي دي. خو بهر حال ستا شاعري ته دُ ښه په ترَه رواني او بې ساختګي ور بخښلي ده.

؎ ځان مې او بېلو دَ مینې جواري کښې
تهٔ مې او کتلي ځکه سر په سر شوم

ستا دَ تغزل هره نمونه په راتلونکي وخت کښې ستا دَ زوري مشاهدې دَ نور خوندور اظهار زیري راوړي.

؎ رنګ دې اخلي دَ سالو نه
که شفق دے که اُفق دے

شاعران چې څهٔ ته حُسن توارد وائي. ستا په شاعري کښې راته ځائے په ځائے دغه څهٔ ښکاره شو. لکه چې ما یو غزل ډېر وړاندې لیکلے وو. مطلع ئې وه

؎ وخته هر څهٔ واخله جانان مهٔ اخله
زما دَ صبر امتحان مهٔ اخله

هم دغه دویمه مصرعه ستا په یو غزل کښې دَ حُسن توارد واضحه نمونه ده.

؎ آئینه لاسو کښې قربان مهٔ اخله
زما دَ صبر امتحان مهٔ اخله

یا چې خاطر بابا ویلي دي

؎ خلق پرې تېر شوي دَ سرونو نه
خوله ترېنه خاطر په تشه خود غواړي

ستا د شعر دَ بابا سره نږدې رنګ دی .

دریاب به خوله به ترینه ځنګه غواړي
دَ خولې غوښتنه خو هم خوله غواړي

ستا په شاعرۍ کښې دَ بې ساختګۍ ځنې اړخونه په شعور کښې غور ځنګ پیدا کوي - خو ستا دَ خوانو جذبو په اساس زۀ دغه اظهار ته په ډېره درنه سترګه ګورم - ملاکنډ دَ شاعرۍ په لحاظ نن ښۀ مور پټ دے . او که چرې زۀ دا او وایم چې دَ پښتو ادب په حواله به را روان دور دَ ملاکنډ دور وي نو بې ځایه به نۀ وي - ځکه چې په نثري ادب کښې دَ پښتو ناول - په دې نږدې کلونو کښې هم ملاکنډ زوندے او ساتلو . دَ پاینده محمد خان " دَ دشت لوط مسافر " دَ ابراهیم شبنم " اجړه " او دَ رحیم شاه رحیم " راجګیړه " او " بي بي مبارکه " ددې دعوې واضحه ثبوتونه دی - دغه رنګ په شاعرۍ کښې دَ رحمت شاه سائیل نوم اوس ددې خاورې سره سره په نړیوال سطح پیژندل شوے او منلے شوے دے .

مونږ ټول دغه ژوندانه سباوُن ته سترګې په لار یُو . ځکه چې ژبه دَ یو قام مور وي . او کوم چې چې دَ مور ښۀ خدمت اوکړي . هغوئ تل ترتله په تاریخ کښې یاد پاتې کیږي - نو دریاب به وروره ! زۀ درسره هم دغه خبره منم چې :

اوس به چرته هم بد رنګ دریابه نشي
دعاګاني درته سرو لاسونو اوکړي

چې دَچا دپاره سره لاسونه دُعا ته پورته شي- نو بيا هاغه خواه مخواه منزل ته رسي- زهٔ هم ستا دپاره دغه جذبات او دغه احساسات لرم- او دا "**باور**" لرم چې لکه دَ "پښتو افسانې" به په "پښتو غزل" کښې هم دَجديدو لارو دَ لټون سفر جاري اوساتي.



دَ ډېرې مينې او نيکو پېرزوينو سره

لائق زاده لائق
ريډيو پاکستان پېښور



په زړونو کښې تيارې دي په ذهنونو کښې تيارې دي
دا ځکه نو زمونږ په قسمتونو کښې تيارې دي

څه برنده محرومي ده تيندکونه خورو رالوېږو
په کلو کښې تورتم دے په ښارونو کښې تيارې دي

دا نه چې د جونګړو په ډيوو کښې مو تېل نشته
زمونږ خو د وطن په محلونو کښې تيارې دي

څغوې د دنياګانو وېش کوي په ترېوالو
چې خپله ئې دېره په ضميرونو کښې تيارې دي

تر هغې به د بنې ورځې په څېرسې رانده یو
تر څو چې مو یو بل ته په نیتونو کښې تیارې دي

ښکاره ئې د تقوی مسئلې څې په هوا بره
دننه د شېخانو په موغځونو کښې تیارې دي

دریابه د شعور کهکشانونه ورله راوړه
مېشته ده زموږ د خلقو په سرونو کښې تیارې دي

څکېس

* * *





ګل پاڼې ورځ نه وته شپه نه وته
ستا نه بغیر یوه لحظه نه وته

هاغه چې زه تلمه ته غړیو اونیوې
په ټوله لاره مې د زړه نه وته

زما د ژوند څنګې وتلې ده خو
د لاشعور نه زما ونه وته

ستا د یادونو ناقلاره واړه
د خیال د کوره مې وېسته نه وته

زما نمر مخې بناپېرى بې لتا
د روح د چم نه مې تيارۀ نۀ وته

درياب به لوند اوربل ئې نۀ وچېدو
سحر به هر ته شرمېدۀ نۀ وته

چکېسر
اګست ۲۰۰۰ء



*

* * *

*





په مصيبت ناروغه نهٔ رغيږي
دَ محبت ناروغه نهٔ رغيږي

دَ بدنيتۍ هيڅ علاج نشته دے
منه دَ نيت ناروغه نهٔ رغيږي

روغ شي ناروغه په دارو دَ صورت
خو دَ سيرت ناروغه نهٔ رغيږي

سړي دَ لوږے کاڼي نه لاندې ښهٔ دے
چې دَ رشوت ناروغه نهٔ رغيږي

ددې اولس غور ضرورپکار دے
په نصیحت ناروغه نهٔ رغېږي

پرېږدئ چې زاړې د ضمیر په مړې
د سیاست ناروغه نهٔ رغېږي

دریابه روغ شي په دولت ناروغه
خو د دولت ناروغه نهٔ رغېږي

چکېس
۲۵, اگست ۲۰۰۰ء







سترګې زمونږ سپړلۍ ته ښکته نشي
ستا د جمال شوخۍ دې ټيټه نشي

که مجبورۍ که کمزورۍ ورته وې
خو کار مې بې له محبته نشي

ښکل به اودو مې کړه په نيمه شپه کښې
څوک وائي غلا چې له جنته نشي

څومره سپېڅلې به وي هغه ځوانۍ
چې پرې اوچته د چا ګوته نشي

نن به ئې اومنم دَ سپینې خولې خو
وړه دَه پام چرته عادته نشي

خدایه بې وسه ښه په دې یمه چې
څوک مې ازار له شخصیته نشي

ژوندے په زمکه ننوتے ښه دے
دریاب دې چرته کښې بې پته نشي

سر په دشتونو له ازله یمه
خار مې دریابه له وحشته نشي

شګے

۲۳ اپریل ۲۰۰۱ء

* * *



څوانۍ پرې داسې کړې دي ګلونه بهارونه
چې فکر ورته وړې دي ګلونه بهارونه

نښې او رخسارونه ئې د کور له کاره روسته
تهٔ وے به لکه سترې دي ګلونه بهارونه

اشنا ستا د مُسکا د قیامتونو نه خبر دي
دا ځکه یره زړې دي ګلونه بهارونه

ګلرنګه زهٔ ئې منم ستا نازبینې پېرزوینې
که شر دے که جګړې دي ګلونه بهارونه

دریا به آهو ستړي نرمې شوګیرې شنهٔ خالونه
قسمت غېږ ته راوړې دي ګلونه بهارونه

چکیس



ځان مې په حال کوُ خو په حال نهٔ شومه
پوهٔ دې په لذت د وصال نهٔ شومه

ما باندې صدمو تجربې اوکړلې
زهٔ یم چې ذره هم ملال نهٔ شومه

ډېر مې ډېوالونه شو د لارې خو
شکر دے چې زهٔ ئې دیوال نهٔ شومه

ښکلیه بیا ستا د جواب چرته ووم
ښهٔ ده چې په شونډو دې سوال نهٔ شومه

کړم دې د وحشت په سورلړا لتاړ
لوند دې د اوربل په شمال نهٔ شومه

زهٔ جوړ ازلي سپېړهٔ دریابهٔ یم
غېږ کښې د جانان چې خوشحال نهٔ شومه



*

* * *

*



## یادګیرنه: د ملګري اقبال شاکر په غزل تضمین شوی غزل



چې چرته کښې ځواني وي بناسُتونه پاڼې پاڼې
څنګ هلته به بیا نهٔ وي احساسونه پاڼې پاڼې

بغیر زما د خیاله که دې بل تصوّر اوکړو
”په تا دې درسې شي قرآنونه پاڼې پاڼې“

بسکاربږي خپل وچ شوي ګلابونه ئې اخستي
په ما ئې هسې ټول کړل کتابونه پاڼې پاڼې

آخر نو خدایه کفر د نعمت دې څنګه اوکړم
راځي رالهٔ خوارهٔ وارهٔ لاسونه پاڼې پاڼې

نن بیا دَ واورې شپه ده نن مې بیا مخې ته کېنږي
ربښې لهٔ یخنۍ نه به ګلونه پاڼې پاڼې

دې بڼ کښې دَ ګورګورو لولکه زمونږ دَ کلي
که سکڼو تروږمو کښې دې رنګونه پاڼې پاڼې

دریاب به دَ زړګو پاڼې کول هغو ته څهٔ دي
هغو چې دَ مینو کړل روحونه پاڼې پاڼې

حکیس

*

* * *

*

○

بیا مې نن بنه لمبه را اوریږه
چې مې په زړه هغه را اوریږه

د احساس للمې مې رنګینې شولې
بیګاه پرې تولې شپې را اوریږه

ستا د یادونو پوسې پوسې داوره
زما د روح په غوږه را اوریږه

زړه چې راتلم لیونی، نه صبریږه
په ما شپه شپه را اوریږه

زما جلال پکښې بنه اولمبېدو
چې دَ جمال نشه را اوربېده

دَ ژوند زخمونو مې دريآب بنه شو
خوګ پرې تو ده توده را اوربېده

چکېس



*
* * *
*





بیا مې د شنو سترګو بلا واخسته
بیا مې خود کشي له سنګیا واخسته

ما وے چې زما نه دې ساه واخسته
بیا چې دې نامه د سبا واخسته

ژوند د یو مسکي نظر په بیعه لاړ
دا مې خومره ګرانه سودا واخسته

سترګې مې ارمان غروے چرته شي
وخت مې د رازونو حیا واخسته

وه زما دَ ژوند او مرګ خبره خو
تا څومره اشنا په خندا واخسته

لاړې به دریابه اوس اسانې شي
لاره چې بې لارې بېګاه واخسته

شګې
۲۳، اکتوبر ۲۰۰۱ء



*
* * *
*





بلو لمبو ته مې سکاره اونيوه
ستا انګو ته مې لمه اونيوه

نن دې چېرمه دَشوخۍ په غرض
نن مې دې لار په اراده اونيوه

تلله دَ لېچې مې را اونيوله
ما وے په لاس کښې مې لمبه اونيوه

اوس نو زما په مرګ کښې شک دَ څه دے
ګوته چې ما پله هغه اونيوه

راتلله ، اودرېدله اوشرمېده
ځ نه ئې خپله لوېته اونيوه

درياب به نه شولې اختر نه به شې
هسې دې تول عمر روژه اونيوه

شکې

۲۴ ر اکتوبر ۲۰۰۱ ر



*

* * *

*





نره ګهړۍ نوې عذاب راوړي
د جمال خيال دې اضطراب راوړي

زما لالې زما قاتل تلې دے
د زړهٔ پرهر له مې تېزاب راوړي

زاهده څښم به ئې په دغه هيله
توبه چې ګڼه شي ثواب راوړي

په نرګسي لېمو کښې سرهٔ د غضب
څنګ به ئې څوک د ليدو تاب راوړي

زما احساس تږي ما په ډېره ساقي
زما ځواني ماله شراب راوړي

لاسونه تش وي د دریاب بنسکلیه
تېکونه عمر له سیلاب راوړي

شګې

۲۶ راکتوبر ۲۰۰۱ ء



*
* * *
*





هغه له اخر زهٔ یو سمه ځله ګلابونه
په چاپېرې چې ګوتې مروړې خپله ګلابونه

ویُل ئې چې زما دَ خوشبوګانو دَ رنګ غلهُ دي
هغې دَ خپلو پښو لاندې مږله ګلابونه

غانټول غانټول چاڼچه او نرګسې نرګسې سترګې
سنبل سنبل ئې زلفې او راتلله ګلابونه

هغې دَ خپلې ملې سره لوبې پرې کولې
په لاسو ئې منبل ویُل ئې پلهُ ګلابونه

دَ بنګلي دَ بنګلا او نن اکت به درته څه وړم
دَ بنګلي دَ تلي نه دَه خزله ګلابونه

دریابه دَ سپړلي سپرلي شړونونهٔ څارشم
زما دَ یار خو هره یوه کنځله ګلابونه

چکیس



*
* * *
*



خښې دې مه سپېره په عطرو دې سر مه غوړوه
بیا مې د خوږ زړګي ورغلې پرهر مه غوړوه

زه ازلي سپېره بدبخته یم بد مرغه یمه
هما په ما دې خپل ارزښته وزر مه غوړوه

ویرېږم سپوږمۍ پرې اشنا د ښاپېرو اوبه شي
لوندې جامې په کشمالو کښې په نمر مه غوړوه

زه د خپل قام د بې قدرۍ زهرو وژلې یمه
زما په قبر د ګلونو څادر مه غوړوه

ستا په اخلاص باندې شک نه کوم خو دومره در څخه
د زړه غالۍ دریابه هر چا ته زر مه غوړوه

شګې

۲۷ اکتوبر ۲۰۰۱ء





ما وژني ما پرېږدي چرته، ما ګوري راپسې دي
زما د ناکرده جرمونو سجودې راپسې دي

حالات او حادثات راته يوه ډېلۍ شوي
په ما ئې د ستم کمرې اورې راپسې دي

لا ناست سره هم نه يو محبته څه بلا ئې
سوارۀ د ښلتانه دې په شا تورې راپسې دي

زۀ بنه به شم آسمانه يوه ذره هيله مې نشته
په ما چې دي سپيره منحوسه ستورې راپسې دي

آخر نو زۀ به څنګه اعتماد در باندې اوکړم
چې ستا د َ بې لوظئ د ګمان سپورې راپسې دي

دریاب به د َ غمونو سلسلې او بهیږ ونه
زما غونډې بې وزله په کمزورې راپسې دي

پنبته ۲۷ اکتوبر ۲۰۰۱ء
شګی



*

* * *

*



یاد شې راته ته د رېسي ژاړمه
ټوله شپه درپسې ژاړمه

تا خو دې خدائ د تصور نه هم خبر نکړې
څنګه څنګ چې زه درپسې ژاړمه

مریم ستا د مرو سترګو په مرو کتو
ځکه خو مړه مړه درپسې ژاړمه

ستا د ګرمې غیږې عطر ژنې شپې
شي مې را په زړه درپسې ژاړمه

سترګه مې دریابه د چپانه سوزې
ګوره بنه بنکاره درپسې ژاړمه

نښته، ۳۱ اکتوبر ۲۰۰۱ء





اووته له کوره بهر چرته ځې
بیا به توره خپره سحر چرته ځې

زړه ې دَ هر ځه هر ځه نه اووېستم
"ستا دَ اداګانو اثر چرته ځې"

دانګي له بارخو نه ګرېوانه پله
دا زما ګستاخه نظر چرته ځې

بیا مي وخت کابل په ارمانونو شو
خدایه! چې به ورېي نهر چرته ځې

دا یمه رقیب خهٔ شو په کومه لاره
لږ خو دې را اوګرځي نو چرته ځي

اوښکه دریاب له ورسي سینه
ګرانه ملغرۍ په سر چرته ځي

۸ نومبر ۲۰۰۱ء
شګی



*
* * *
*



نوم دې په ډاګه په ښکاره اخلم
نن دَ خپل ځان ځنې پرده اخلم

دَ ښائستونو بازارونه ګورم
خرائے زده چې څهٔ لږ مه څهٔ اخلم

دَ زړهٔ زخمونه مې پوټکي نيسي
ځکه تېرهٔ تېرهٔ بانهٔ اخلم

دَ نظرونو خريدار يمه خو
څنګ به په بيعه پښتانهٔ اخلم

درياب يم کانړي وروه ښکليه
هر يو ګذار دې په سينه اخلم

چکيس





ځان سره ظلم کوم بد کومه
چې د ښکلو تو سره ضد کومه

چې د ښتو په خلاف خوله پرانیزي
زهٔ خو به خامخا پرې رد کومه

په لویه لار کښې ترینه غاړه اخلم
د ساډګۍ د اظهار حد کومه

زما قامي تشخص نهٔ جوتوي
غند نه ځکه د سرحد کومه

درېغه چې ژوند کښې به پرې اورسو مه
کار د بنګلا په داسې مد کومه

زړونه به څنګ دریا به نه راکازي
یک په رنګونو د آمد کومه

نېټه ۲۹/۱۱/۲۰۰۱ء
چکېسر







حُسنه سر ټيټې شمه خکته شمه
او خپل ضمير ته ملامته شمه

ستا د پرېوتو تقاضو په وړاندې
زۀ څنګه پرېوځمه بې پته شمه

ښکلا ته کله ټينګ نۀ شمه
بېخي ناپوهه ناشولته شمه

راځه مې غېږ ته څو په غليب کښې اشنا
هسې نه خلقو ته په ګوته شمه

په لویه لاره کښې ئې اوچېږمه
مجبور دَ خپل کافر عادته شمه

دریابه مور شومه له هر څه نهُ خو
دریغه که مور له محبته شمه

نېټه: ۱/۱۲/۲۰۰۱ء
چکېسر



*
* * *
*



چې د ښکلو تو نه نوکې غواړم
د سرابونو نه سيپۍ غواړم

چې آسمانونه تيتېدل به ورته
د ښېستنو لمغه پګړۍ غواړم

دې بې وفا نه د وفا غوښتنه
پټ په غلبېل کښې د مرغه غواړم

بيا پرې شين سترګي ورډوي اوروبه
بيا د مېوند نه "ملالۍ" غواړم

دَ ژوند نبضونه مې پرېوتي اشنا
لږ ګرمي دې دَ ځوانۍ غواړم

دریابه لوے شومه که بیا دړوے
دا چې ګکورې دَ سپو بزمۍ غواړم

*
* * *
*



تاکه په ځان دَ لاس وهلو لاس اخستے نهٔ دے
ما هم دَ بنګلو دَ چینړلو لاس اخستے نهٔ دے

لا دَ ګودر اوبهٔ راوړي لا خو لوونه کوي
لا يې دَ ساګو دَ غنډلو لاس اخستے نهٔ دے

وخت که دَ ژوند دَ غرهٔ له سره راځوړے هم يم
ما دَ ورتو ټپو کولو لاس اخستے نهٔ دے

که قاتلانې سترګې هغسې بانهٔ ګرتوي
زړهٔ هم دَ زخم شو کولو لاس اخستے نهٔ دے

مونږ ته به نور نمر ونه هم دریابه اوزږ وو
مونږ دَ دنیا دَ کرکولو لاس اخستے نهٔ دے

پېښه:- ۹, دسمبر ۲۰۰۱ء





داسي مي خوب سوي لمه غواړي
لکه چي سخت تږے اوبه غواړي

د شبنمي نزاکتونو سحر
د اور په سورکومي کښي شپه غواړي

چا ورته اووے چي دے ځله راځي
وي د رندو نه ائينه غواړي

د بناسټونو په چنار کښي تاله
په تا دوه غبرګي ځانګړه غواړي

اوشوې موږې چې زړهٔ پرې نښم کوې
رښتیا دهٔ هرڅهٔ هرڅهٔ زړهٔ غواړې

دریابه خوله به ترینه څنګه غواړې
دَ خولې غوښتنه خو هم خوله غواړې

نېټه:- ۱۱ ردسمبر ۲۰۰۱ء
شګی



*
* * *
*





انحصار چې پرې د ژوند دے
ستا د نرمو شونډو خوند دے

ملالۍ غريبه مړه ده
ګنې بيا ګرم ميوند دے

ستا د سرو پېزار پښو دے
او زما په غاړه کند دے

د عدن ريښم ؤ غلۀ دي
دومره نرم دې مړوند دے

مالا کنــړ دَ بنګلو ړک دے
خو جانان پکښې ځرګند دے

تا دریآب حسُنه تــړلے
جادوګره بند په بند دے

نېټه:- ۱۱ دسمبر ۲۰۰۱ء
شګئی



*

* * *

*





چې په سترګو کښې مسکې شوه
راخوره مې په ځوانۍ شوه

چې يې ذکر د ناز اوشو
لا نيازبينه شوه تنکۍ شوه

بنګلا هغه ځائې ته يوړم
چې کښې د زندګۍ شوه

اوس چې زما د فکر
لړ رالوځې شوه د نهارۍ شوه

دا زما دَ سینې خاوره
رنګ زما په شاعرۍ شوه

دا هم ډېره ده دریاَبه
چې داده مې په ډارې شوه

نېټه:- ۱۳ دسمبر ۲۰۰۱ء
شکۍ



*

* * *

*





موږه سوچ نهٔ کړلو نظر نهٔ کړلو
موږه دَ سره هوس نه کړلو

لا مو په ژوند برنده تیارهٔ خوره ده
لا موږ دَ خپلې شپې سحر نهٔ کړلو

دَ بې خبرۍ په ژور خوب اُوده یُو
دَ یوې خبرې هم خبر نهٔ کړلو

اسمان که خپله برخه نشته زموږ
په زمکه هم پوله دَ کَر نهٔ کړلو

خوک ورته خټک راشي په کومې راشي
موږه د زړه کماله ته ورنه ځو لرلو

موږ که د پوهې سره ډزې کړي
موږ د فنونو همجوهر نه لرلو

د ترهه کړو کوته موږ ته نیسي
موږ په نړۍ څه بنه اثر نه لرلو

دریابه نور خلق سپوږمۍ ته ختږي
موږ د شنړۍ ختو هنر نه لرلو

نېټه:- ۱۵، دسمبر ۲۰۰۱ء
شکی

* * *





آخر دې زړهٔ چاودي زړهٔ چاودون په زړهٔ کښې څهٔ دي
ترڅو به زور وي چې د ژوندون په زړهٔ کښې څهٔ دي

هم نن يې سره پيمانه کالي يې زړهٔ کښې څله
راځي دې شي گردشه د گردون په زړهٔ کښې څهٔ دي

د علم په خوا نه ورځي او سترگې ښتې نړۍ ته
په خدائے زما د کلي د پښتون په زړهٔ کښې څهٔ دي

زهٔ حق لرم چې او غواړم خو نهٔ غواړم په دې چې
زهٔ گورم چې د حسن د قارون په زړهٔ کښې څهٔ دي

موډې اوشوې چې ما نه مرور دے بر ناحقه
په خُله رانه خفه دے دَ سکون په زړهٔ کښې خُله دې

سن ابه دَ دریاب بې ټیکاوې وې تر ابده
فطرته ستا دَ بنګلو دَ قانون په زړهٔ کښې خُله دې

نیټه ۱۰- ۱۷ ردسمبر ۲۰۰۱ء
شګئ
(دَ ډېروکي اختر ورځ)

*

* * *

*



زما نه تر بېدو د بدګمان په زړه کښې څه وو
زما خو ورته خدائ شو که په ايمان په زړه کښې څه وو

خبره ئې د شونډو سر له راغله وه ئې نه وې
بېګاه چې خدائ خبر دے د جانان په زړه کښې څه وو

زما د روح په زخم ئې د اور پټې کوله
ورله ئې نورې د درمان په زړه کښې څه وو

دا نن چې تندرونه د ادا راوارول ئې
د بنګلې د نازونو د اسمان په زړه کښې څه وو

دَ مینې دَ رنګینې جوارې په ټیکرې ناست وُوم
والله که مې دَ سود او یا دَ زیان په زړه کښې خیال وُو

دریابه دَ پرېشانو زلفو څوکې ئې ځیرې
ولاړ وو ایښې دې په دَ ځیران په زړه کښې خیال وُو

نېټه:- ۲۰ دسمبر ۲۰۰۱ء
شګئ



*
* * *
*



سم د سحره مې دا زړه په زړه کښې ځکه نشته
چې مې د روح لاله زارونو کښې لوګه نشته

د بېګانې بو سو اثر زما منې او کنه
نن دې په مخ بانـدې اشنایوه څوانکه نشته

خدایه ښځې به مې په کوم ځاے کښې ما اونه وژني
زما په کلي کښې خویو ګډوزے زمکه نشته

ما ته وړه لورکۍ زړه بړي دخو میاشتو راسي
ماله ښنزکه واخله ماسره ښنزکه نشته

هاغه چې مونږ به پرې مابنام له سپر اوره کېښوله
اوس هاغه خوند د مزدورۍ د ټکه پکه نشته

وې ملغلرې دریابونو کښې منمه دې خو
ستا د دریاب سره د یوې کوړې کُنجکه نشته

نېټه: ۲۰، دسمبر ۲۰۰۱ء
شگئ



*
* * *
*





سترګې که وختونو په ما سرې کړلې
ما هم په وختونو سترګې سرې کړلې

تا چې سترګې تورې شونډې سرې کړلې
ما له دې جذبې ارې ارې کړلې

څه د ځان ځانۍ هوا را الوتې ده
شاړې ئې د هر کلي حجرې کړلې

فرق په عقیدت او عقیده کښې شته
ورانې بې ادبو هدیرې کړلې

ستا د تغافل اورونو اوسومه
باد مې د ارمان په سر ایرې کړلې

ما وړلې مرګ نشي ژوندې یمه
هسې افسوګانې تا خورې کړلې

دا دریابه زه څومره بد مرغه یم
ژوند په وینو سرې زما اسرې کړلې

نښته ۱- ۲۰ دسمبر ۱
شګې

* * *





دَ بندګۍ له قیده اووتمه
که دَ خودۍ له قیده اووتمه

ما دَ رسمونو زولنې ماتې کړې
دَ غلامۍ له قیده اووتمه

مینې هستي راته را اوبخښله
اوس دَ نیستۍ له قیده اووتمه

که ته مې هیره کړې نو اوګڼه چې
دَ ژوندګۍ له قیده اووتمه

دَ سر لوړې معراج ته ورسېدم
دَ سر کوزې له قېده ووتمه

دریابه بنګېل کړمه سورو دَپېیې
چې دَ څوانۍ له قېده ووتمه

*

* * *

*





ائینه لاسو کښې قربان مه اخله
زما د صبر امتحان مه اخله

مات که بنګړي دې شو نو کیږي داسې
ښکلې بدله مې د ګریوان مه اخله

خدایه زما که سوي زړه ته ګوري
نو بل د هیچا نه جانان مه اخله

بې ملازې ترې خاورې ډېرې ښه دي
د ملازې سره آسمان مه اخله

دَ بنګلا بُتــه نور مې لس ځــهٔ واخله
خو ما نه ایـکي یو ایمان مهٔ اخلـه

ګـوره سبا به کاره مــو سـترګې لګي
دَ یو نظر دومره تاوان مـهٔ اخلـه

دریاب به خوند له اجارو نه اخله
یو پیتي چړي توږان مـهٔ اخلـه

نښته ا ۲۲، دسمبر ۲۰۰۱ء
شکي

* * *



سزا سزا ده دَ تعزیر لاره ده
دَ محبت لاره دَ ویر لاره ده

دَ ښکلاګانو دَ نیلم غیزې ته
زړهٔ دَ اورونو په کښیر لاره ده

موږ لېونې پرې خپل مرام ته رسو
موږ چې نیولې دَ زنځیر لاره ده

دَ خواهشونو دَ تکمیل کلي ته
شته خو په مړې دَ ضمیر لاره ده

دریابه څوک چې دې وجود نهٔ مني
ستا هم دَ هغو په جاګیر لاره ده

نېټه: ۲۳، دسمبر ۲۰۰۱ء
ښکې



دځان نه لاړم که دځان پورې را اورسېدم
دیو نیمګړي اطمینان پورې را اورسېدم

د الزامونو اسمانونه مې دپښو لاندې کړه
ستا د بنائست د لا مکان پورې را اورسېدم

ما د ضمیر د سودا سوچ قدرې هم اونکړو
څه که د ژوند د لوئے تاوان پورې را اورسېدم

زۀ د فطرت مجبوره سم نۀ شومه وران شومه لا
که صحیفو نه د قران پورې را اورسېدم

په ځان به لوبې تندې هر ځۀ تېر وومه دریابه
خو چې د کلي د جانان پورې را اورسېدم

نېټه ۲۴، دسمبر ۲۰۰۱ء
شګې



زما رنګ خلي له څوک نهٔ راوړي په هېره ډېوې
نور ګڼي ټوله هديره ګڼي دي چاپېره ډېوې

سم دُ ماښامه به مې ستوري څنګ ته راغلهٔ اشنا
موږ ستا په ياد کښې بلولې به تر ډېره ډېوې

خدايه چې څوک ني پرې زموږ د زړګو رڼا وي
په محلونو داسې تل لږه بې شمېره ډېوې

څُوک چې نمر ونه ورله راوړو له آسمانه څُني
ملګرو څو پورې به موږ غواړو له غېره ډېوې

دريابه موږ به پرې د خپل مرام ترغېږې رسو
زموږ په فکر کښې روښانه دي له خېره ډېوې

نېټه ۲۵، دسمبر ۲۰۰۱م
شګی





دَ ارمان ناوې مې ولور غواړي
دَ بړبوکو نه سمندر غواړي

هر څوک ترې هر څهٔ اخستلے شي
نظريه هم کوري نظر غواړي

دَ زړګي کند مې روړيدلي اشنا
دَ ښائستونو نه استر غواړي

بې وسي دومره بې باوره کړمه
زما ګېچي مانه باور غواړي

بنګليه بيا را بانديږ خلق اودرئ
ستړي دي بيا ګوابنيږي شرغوارې

دريابه نمر ورله راورمه څمه
دَ محرومۍ دا شپه سحرغوارې

نښته ، ۲۵ دسمبر ۲۰۰۱ء
شګه



*

* * *

*





زړه خپله پښېمان شو مه پښېمان مخې ته راغ
زما نه پټېدلو خو جانان مخې ته راغ

فرار د افغانانو په تاریخ کښې نشته ګله
پلو ورسره خدا ایګو که آسمان مخې ته راغ

ما چرې په کاڼاتو کښې د شر لټوو تلمه
په هر ډګر چې راغلمه انسان مخې ته راغ

هغه وه چې ئې ځان وو سنبال کړې چرته تلله
ما وې که د رنګونو کهکشان مخې ته راغ

راستون ئې مېخانې ته کړم موږ هلته کېنې شو پاتې
کړنګا مې د جام واورېده شېطان مخې ته راغ

وېل وې چې خانه اوس خوږه يو سر خان دے
پرون راله زمونږ د کلي خان مخې ته راغ

درياب په غورځنګونو بې نيازه يم له هر څه
که غر راته راځي که بيابان مخې ته راغ

نېټه: ۲۶، دسمبر ۲۰۰۱ء
شګه



* * *





اکه څې تندرخو قضا راولي
ولې خدا دې ماکښې ساه راولي

بیا به ایمان درته معلوم شي زما
خدائے به دې چرته کښې په ماراولي

پښتو نو لې پرې څومره جبر کوي
زما رقیب ما پسې ورا راولي

زۀ درته بسه کوم تۀ نۀ کوې تل
شر به زمونږ یو ځلې دا راولي

منه يې مه خوتورتمونو واورئ
زما فکرونه به درنا راولي

چې د پښتو سره پښتون يې کوي
دريابه ماله خو ژړا راولي



*
* * *
*





ما دَ قسمت دَ کړنبو غلا اوکړه
مینه مې ستا سره اشنا اوکړه

عشقه چې څه بلا ئې نه پوهیږم
هغه چې نه وو تا په ما اوکړه

اوس مې جنون جوبن ته اورسیدو
چې په ژړا کښې مې خندا اوکړه

چا په وطن بانديٍ سرونه کیښوه
چا دَ سرونه ئې سودا اوکړه

بېګاه چې ما ئې بنګلول خالونه
ستورو زمونږ ځنې حیا اوکړه

انسانیت معراج ته اورسېدو
انسان په مړو هم ګېرا اوکړه

دریابه تاته مې بنېرې کولې
خو په غلطۍ کښې مې دعا اوکړه



*

* * *

*



خنک به مانه یه ښکلیه سُول نهٔ ځي
ستانه چې نشه د تغافل نهٔ ځي

دا د نری زغل دے پښتنو گوری
منړه کړئ په دې کښې ځوک په توُل نهٔ ځي

نمر ئې د جبین راپرځولے دے
خکه خو تیارې ئې د کاکل نهٔ ځي

نن مې لیدو رنگ ئې ورولو تلو
چا وئیل چې ښې نهٔ دې کُل نهٔ ځي

سر مې دَ رقيب نه دَ سپي جوړ کړو خو
بيا هم غاړې غاړې نامعقول نه ځي

څه چې څو دَ زړهٔ ډيوه په لاسو کښې
څو پورې دريابه به دا زول نه ځي

نېټه: ۳۱ دسمبر ۲۰۰۱ء
(اکوړې ته په لار)



*

* * *

*



دا زما دَ پيټکي وَل دے دا زما دَ ديارِ بام دے
ستا دَ سترګو پـه ککـو کنبې برند غرورته مې سلام دے

ما نـه څـه غـواړي وختو نـه تقدس دَ روايـاتو
چې ګناه ګناه ژوندون مې عبارت دَ نيو الزام دے

ما پـه ځـاے دَ سرو ګـلـونو، ستا تالا والا اوربل لـه
غني راوړي، ازغي راوړه دا دَ سور سپرلي انعام دے

څـه چې خولې مونږ سره ورکړو پـه کړنګا کنبې دَ جامونو
دا دَ ژونـد نـه لږه تېښتـه هـم دَ وخت نه انتقام دے

دا وېښتـهُ نـرۍ مـلا ګانـې دا دَ ترکـو اتـڼونـه
ستا سو ګلے ښو دريابه نن پښانتې دَ باګرام دے



ماته زما د پوهې بود اونه شو
ماته ادراک د خپل وجود اونه شو

د عبث په تاوانې سودا کښې
چاته د یوې کاسیرې سود اونه شو

زما د روح د زخم شونې علاج
تا نه کولو ځکه خود اونه شو

مینې وې دانګه اور ته او مې دانګل
یو ذره مانه تردُد اونه شو

دریاب ئې اوړتلو اوشړو خو
ذره د ایاز نه د محمود اونه شو

نېټه : ۵، جنوري ۲۰۰۲ء

شګې



په يو کهاله کښې ستړ کوې څه اولمسولې
ځوانۍ درته څه اووې کنه زړه اولمسولې

په خدائے که د بل هيچا نه مې سترګې سوزېږه خو
بې رحمه ګرد شو نو راته ته اولمسولې

زما پښتنې پېغلې اوښکې نه وتې له کوره
ښکارېږي مجبوره مې د ليمه اولمسولې

نظر چې دې ساهو ساده معصوم ووګلېدنه
زما بدقسمتۍ ته ګوره ده اولمسولې

دريابه تا خو واوره کښې غاړې نه ده راکړې
دا نن ښنګه د څو پرکو ساړه اولمسولې

نېټه ۱، ۶، جنوري ۲۰۰۲ء

شنګې



دا لا چا وې چې د تا پښتان سپوږمۍ ده
ستا په وړاندې سپوږمۍ توره چنګښۍ ده

د احساس لاله زارونو کښې مې پرق دے
څوک زما د روح په دښتو کښې مسکۍ ده

پښتو ځکه په سر سترګو ګرځوومه
دا زما د تشخص د ناز پګړۍ ده

ستا د سترګو کږلیچو نه ځکه ځېږم
پکښې سپینه رڼه لار د زندګۍ ده

دَ معاش دَ کشالو په جرنده دَل يو
دا په مونږ ده چې سايه دَ محرومۍ ده

دا چې خپل تهذيب او ژبې ته کوزګوري
دا دريابه انتها د بې حسۍ ده

نېټه ۱ ۷، جنوري ۲۰۰۲ء
شګې



*
* * *
*



دا ژوند څومره بې ژونده دے لږ ژوند پکښې پیدا کړه

څه! او خانده یو څو څاڅکي د خوند پکښې پیدا کړه

څښتنه چې د ګړدو یوسفزو د زړه اواز شي

بیا کو غونډې بناغلے نر فرزند پکښې پیدا کړه

زړګیه د حالاتو په جنګړ کښې روسته نشي

وختونه زهر زهر دي خو قند پکښې پیدا کړه

ړڼه په پښتو غځو اشه د تحقیق ډیوه په لاس

څه! او ګړ څه کامل غونډې مومند پکښې پیدا کړه

دریابه دَ ښښتو په مطالبو کښې اَتْ له
ښکلوالے دَ شیراز او دَ خجند پکښې پیدا کړه

دریابه دَ جدت نزاکتونه په غزلے کښې
دَ نوؤ تجرباتو په اړوند پکښې پیدا کړه

پښتو ، ۹ جنوري ۲۰۰۲ء
شاکر



*

* * *

*





جوړوم د زړهٔ په وینو په کلونو تصویرونه
ستا د اداګانو د نازونو تصویرونه

عکاس زما د سوي لوي ژوند دې د دردونو
د ویر په رنګ لړلي د غمونو تصویرونه

بوږنوېږمه د ذهن په پرده چې مې راواوړي
د مینې د جنون د تېر وختونو تصویرونه

ما تل ښکلو خلو ژړوي په چغو چغو
زما د ځواني مړګو حسرتونو تصویرونه

ا ما د مختلفو زاوېـو نه اخستلې
پراته دي ما سره ستا په سلګونو تصويرونه

پرون ئې ستا په تور باندې درياب د ګ په دار کړے
زوړند دي ستا په ښار کښې په چوکونو تصويرونه

*
* * *
*



لا څو تیارۍ بربنډۍ دي نور چرته دے
لا څو په موږ شپه ده سحر چرته دے

کاڼے هر یو کس په تنه ایښے دے
دلته کښې په چا پورې سر چرته دے

موږ د ځان مړخ غواړو که هر څه وي
موږ کښې سوچ د قام د نور چرته دے

تل مو د جنډ باتو بهیرونه وړي
پوهه زموږ کوم ده نظر چرته دے

لوبه دَ مرګونو موسره کړې ده
قدر دَ شرشته دَ بښ چرته دے

موږ که غلهٔ ښځبله باندې نهٔ یؤ نو
بیا زموږ دَ ځپل کهالهٔ ور چرته دے

موږ خو لا دریابه ښخپل ځان کښې یؤ
موږ کښې لا ادراک دَ بص چرته دے

نېټه: ۱۰، جنوري ۲۰۰۲،
(پېښور ته په لار)

* * *



ته لا په لاره وې راتلې اووتې
د روح له کوره مې تيارې اووتې

خدايه! د مخې کال سوب مې اوکړې
سږ کال بيا واورې واورې شپې اووتې

تا چې جوړه لا سو نه کښوه په ما
د رقيبانو نه بنې اووتې

د مغربي تهذيب بربنډ يرغله
د انسانانو نه جامې اووتې

دَ ژوند دوزخه دَ روزګارتکله
دَ ډېرو ښو زلمو لښې اووتې

دريابه بيا په افغانانو خپله
دَ افغانانو نه تسمې اووتې

نېټه : ۱۲، جنورى ۲۰۰۲ء
شګئ



*

* * *

*





بس کلے زما ، ستا په سيځے تونږ نشي کېدے
بغېر زما دَ تلو تړې بل وراندېز نشي کېدے

زۀ ستا دَ فرشتو ستر گو په تور باندې شهيد شوم
مرگے له دې نه ښکلے او غورېز نشي کېدے

په ما دَ ښاپُستو نو ښاپېرۍ بلسې رابلسې
زما نه خو دَ نور صبر تعوېز نشي کېدے

راغونډې چې پرې ټولې دَ آدم واره دَ نړۍ شي
دَ دغسې يوې لارې ځۀ تجويز نشي کېدے

هغه چې پښتنو ښندو وي ګلک واړه تـرلي
هغه ځې هڅکله د لوېدېږ نشي کېدے

درياب خو په لکونو هم لاس نه نيسي د ښکلو
رقيبه ستا د زړه نه خو انېږ نشي کېدے

پېښه : ۱۳، جنوري ۲۰۰۲ء
شکی



*

* * *

*



ګټو که بڅلو پکښې دانهٔ ګوره
مونږ تیکرې د مینې ته درانهٔ ګوره

دراغلو! چې زلفې دې دارو نهٔ کړل
مونږه لېونې خو بهـــانهٔ ګوره

پس له دې به مونږه ترقي کوو
پس له دې چې مونږه زمانهٔ ګوره

دا د پوهوښتنې ضد ده راکړه ده
ګوره نارینه خو زنانه ګوره

مونږ دَ خپلو ښځا مخونو کړکه کووُ
مونږ چې دَ ځانونو آئینه ګورو

نهٔ ګورو دریابه وړاندې نهٔ ګورو
مونږ هٔ تل تر تله پستنه ګورو

نېټه ۱۳، جنوري ۲۰۰۲ء
شګی



*
* * *
*





عشق زما کول پرې حق دے
چې ښائست ترې نه مشتق دے

د پښتو په ښونځاے کښې
ما د ننګ وېلے سبق دے

چې د حسد پرې ښنېږي
د رقیب په خوله تبق دے

سپوږمۍ زمکې ته راغلې
کنه ستا د حسن برق دے

رنګ دې اخلي دَ سالو نه
که شفق دے که اُفق دے

دنیا کافي ئې خوب وینې
چې دریاب په چا عاشق دے

نېټه: ۱۵ جنوري ۲۰۰۲ء
شکې



*
* * *
*





غوښـېږي دومره ځرته په اسانه فاصلې
زما نه خو لا ماته ښه پرېـوانه فـاصلې

مرام درته پرانستي غېږ ولاړ دے خو زړګيه
حرکت غوارېي لنډېږي نه له ځانه فاصلې

هغه زما د برېتو ځخښېدي ويـنې ځواني وه
لمغه چې بوږنېـدلې به زما نه فـاصلې

دَ اور سمند رونه که تر منځه شي درځم به
زما لاره نيـوې نشي جانانه فـاصلې

موږ واړه چې یو ځو وینه یو د یو آدم بچي یو
نو بیا پکښې له کومې مسلمانه فاصلې

هغه زړه ستا په غېږ کښې په خوب کښې لوسېدمه
ما وې چې ختمه ‌شوې مهربانه فاصلې

دریاب به د نمر مخې یارنه لرې لرې بنده يُ
ړندېږي چې ساقي نه د رڼا نه فاصلې

نښته ۱۷، جنوري ۲۰۰۲ء
شګې

* * *



پوهٔ نهٔ شومه تر دې د ژوندګۍ په کږلیچونو
ما ماته په سودا کړه ګړۍ په کږلیچونو

د ګړو رمه وړاندې ورپسې برې لېونۍ ده
را اوړي په پېچومي د غونډۍ په کږلیچونو

زهٔ ځېر ورته له هرې زاويې نهٔ شوم په غور
ذره هم خبر نهٔ شوم د هستۍ په کږلیچونو

حیرانه مشاطه ورته زړګیه د فطرت شوه
هغې څهٔ داسې جوړې کړې ګېسۍ په کږلیچونو

ولاړ یمه د ذات د آئینې په وړاندې ورک یم
ګړ شوے یم د ځان د حیرانئ په کږ لیچونو

دریابه د پر کاله ستر ګو بنکلې الله هو وه
زړه تلمه که به ورمه پس شانئ په کږ لیچونو

نښتہ ، ۱۸ ،جنوري ۲۰۰۲ء
شګې



*

* * *

*



دَ رېښمې زلفو دَ نرم تاله پرې نه وو ځم
چرته دَ سپينې شنوګې له خياله پرې نه وو ځم

خدايه له برمه مې پرېباسه مه زاړه هډوکي
چې دَ ربښتو دَ خېر غوښتو دَ سواله پرې نه وو ځم

زهٔ دَ ماضي په مرې نه ژاړم خو ژاړم په دې
چې مستقبل کښې د دې خپله حاله پرې نه وو ځم

دَ نوم وركه دَ تاترين ژورې اوُ به مې خورې
ستا دَ جبين دَ لوړ ايلم له خاله پرې نه وو ځم

دريابه خدائے دې توان دَ خس ماله هم نه راكوي
چرته په سترګو په لمو كښې چادرې نه وو ځم

نښته، ۱۹ جنوري ۲۰۰۲ء
شګيه



زۀ لا دَ خپل وجود په زمکه یمه
خو دَ هستۍ نه یې درکه یمه

مسته دَ ځان سره خبرې کوي
وائي سپوږمۍ یمه اوږمکه یمه

چې دَ بې قدرو په ولقه کښې یمه
زۀ که ګوهر یم خو کنجکه یمه

لاس مې دَ مُلانه په زور مَتّاوه
دَ بنګړو بار ګورې هلکه یمه

دریابه مینه له قلم سره کوم
کرکه کوونکے له توپکه یمه

نښتهر ۱۹، جنورۍ ۲۰۰۲ء
شګۍ





لکه خوشبو هسې پرېشانه ګرځي
چې مروره شي له مانه ګرځي

بیا لرې وتې وې سرې له ځانه
خو چې سرې له خپله ځانه ګرځي

اور اورکې په کشمالوکښې نیسي
په ماښامونو کښې نادانه ګرځي

خکې به له سترګو مې شپې شي مه ځه
ګوري وریځې د بېګاه نه ګرځي

زاهده ته چې واڼې مینا، پرېږده
خوک به نو څنګه د ایمانه کرځي

د محبت په جرم دواړه وژني
وختو نه مونږ پسې جانانه کرځي

د ګلي خلق ماته ګوته نیسي
هغي ته نه واڼې چې ورانه کرځي

تله خو فطرت دے د دریاب بنکلیه
نه چې د زول اوله طوفانه کرځي

*
* * *
*





نېغ د مکان او د زمان اووتم
چې د فکرونو نه د ځان اووتم

قهرېږه مه خاطر دې مه درنوه
دغه دے لاړمه قربان اووتم

چې سپین جبین ته ئې له زنې لاړم
ما وې که پورته له اسمان اووتم

کوم ده د ژوند په جوارۍ کښې کټه
هره لمحه ترې په تاوان اووتم

اوس خو زۀ خان يمه دَ خپلې مرضۍ
اوس بېګارونو نه دَ خان اووتم

دَ مغربي اش سپېرۀ يې غله
خپلو جامو نه هم انسان اووتم

دېرې چېچې دَ الحاد راغلې په ما
شُکر دے زۀ ترې مسلمان اووتم

دريا به نۀ راتلم نظر کښې دَ چا
چې دَ نظر نه دَ جانان اووتم

*

* * *

*



ژوند د زهر ژنو لښو غمېږه ده
دا د غمو غمېږ د ازغو غمېږه ده

مېنه د خوښۍ د سکون نوم نه دے
دا خو د سېځلو جذبو غمېږه ده

ذېل مې د ماشوم زړګي په ځائے دي چې
ستا د نظر غمېږ د للو غمېږه ده

غمېږه د جانان ئې رانه هېره کړه
خومره دې نازکه پښتو غمېږه ده

غمېږ ئې د بنګلا تړپو ته نه شي تلے
تاؤ ترې د درياب د چپو غمېږه ده



غلهٔ دې کوي غلا دَ هغو سترګو نه
رنګ دے که رڼا دَ هغو سترګو نه

يه! زاهده سل ځې کړې که زر ځې کړې
نه رغي زما دَ هغو سترګو نه

سيرې چې په نشه کښې شي رابندې شي
زهٔ وېرېږم ستا دَ هغو سترګو نه

کاڼي چوي سترګې دَ رقيب وږي
خدائے دې ساتي تا دَ هغو سترګو نه

زۀ که ورکېږے نشمه ګرم نهٔ یم
څوړې کړې حیا دَ هغو سترګو نه

تهٔ یکښې دریابه ژوندون ګوری خو
مرګ ښاخې صفا دَ هغو سترګو نه

نیټه: ۳ ر فروری ۲۰۰۲ ء
شګی



*

* * *

*



دا آخري ګناه کوم نوره توبه اوباسم
ستا سره هغه شان د داورۍ یوه شپه اوباسم

ذهن د نوي نسل اړوم د احساس په ایوه
د دنیا کړ پکښې کوم تړښه تیاره اوباسم

د لاشعور د کوټو نه ګورمه ماضي راسپړم
ستا د ترخو ترخو یادونو جنازه اوباسم

عقله منمه دي تا اوګڼله بایلله ما
نور د جذبو لاسونه ستا د ګریوانه اوباسم

یم د کوټلو حوصلو د غور ځنګونو دریاب
لار د حالاتو د اور ښیند کومې کښې زه اوباسم

نېټه: ۱۵، فروري ۲۰۰۲
شګۍ





ځرګند وُنه دَ ځان نښـم کوې
هسې توهـین دَ انسان نښم کوې

خپله دَ خپلو برګو لاندې خورمه
زۀ سلامـونه دَ خان نښـم کوې

ما خو ضمیر لا قتل کړے نۀ دے
سودا په سر دَ ایمان نښم کوې

دَ تـنـدرونو نه مې ویـره نشي
خو یارانه دَ آسمان نښـم کوې

دَ کړنګونو نه ګذار يې کړمه
نور اعتماد په جانان نشم کولې

ازاد قطرته يم درياب پابند يمه
زهٔ دَ مکان او زمان نشم کولې

نښته ۱۷ فروري ۲۰۰۲ء
شمکې



*

* * *

*





موږ تل په زړهٔ دَ زخم کر کړے دے
موږ تل دَ ډهر سره شر کړے دے

موږ ځان نهٔ دے جوړېدو ته پرېښے
موږ په پرهر باندې پرهر کړے دے

موږ که وختونو قلم کړي يَوْ خو
موږ هر ځلې نوے سر کړے دے

موږ ترې په ګوتو کښې ويستلې سترګې
چا چې په موږ کوږ نظر کړے دے

مونږ د دردونو هر کلي کړي دي
مونږ ۀ په ويښو کښې سفر کړے دے

مونږ رواياتو ته دوام ښخښلے
مونږ په بمونو کښې اختر کړے دے

مونږ نه دريابه غرونو تېښته کړې
مونږ په اسمان پسې ښکر کړے دے

نېټه ۱۷ فروري ۲۰۰۲ء
شګه

* * *



لمحه دَ سپوږمۍ پروسږنۍ شپه
نهٔ هېرېږي مانه لېونۍ شپه

څومره چې ادراک پکښې سحر ته ځي
دومره تیارهٔ کېږي دَ هستۍ شپه

خدایه دا پېرۍ مې ټوله واخله خو
راکړه ایکې یوه پرې دَ ځوانۍ شپه

موږ پکښې دَ فکر ډیوې بلې کړې
اوس به شي په شا دَ عمرومې شپه

چا ویل چې شپه جنت کښې نشته دے
ما خو پکښې ویسته بېګانۍ شپه

تا که په رباب حجره کښې تېره کړه
ما درته هم روڼ کړه په بلې شپه

بیا دریاب په راغله جدائي سره
بیا زما د غني په پولې شپه



*
* * *
*





ښکلیه ما سره راغلې، تلې مهٔ جوړه وه
زما د زړهٔ د کوڅې نه کلې مهٔ جوړه وه

خدې د ښکلا پرې تر قیامته کړې تمام د نړۍ
خدایه زما د کلالې نه ښکلې مهٔ جوړه وه

څهٔ نه څهٔ لږ پکښې خامخا پرېږده سرییه
فطرت د رایې همیشه را ښکلې مهٔ جوړه وه

د شپې جاموته ګرنګوې د ورځې اړې تسبې
شیخه د ځان نه راته سپین سپیځلې مهٔ جوړه وه

څېړه ئې ګوره ورته جاج اخله د ژوند د پېښو
ځان د شو دو سوي مستو پو کلے مه جوړه وه

دا ستا درياب د ګمنامۍ د مرګ قاتل سرے دے
ګرانه هوارئ کړه په سرئ ځلے مه جوړه وه

نېټه ۱۲۲، فروري ۲۰۰۲ء
شګئ



*
* * *
*



مېنه مېنه څو دَ کړې له سوړ اوره اووښې
لکه چې ساز دَ هنګامو دَ غرهٔ له شوره اووښې

دَ محبت چینګنې ګړه دي تښتوي بنګلوټې
ګوره کم عقلي په غرمه کښې څوک د کوره اووښې

ستا دَ اورنګ جبر په بند کښې بې ګناه کېوتے
زما خوشحال زړګے به څنګ له رتنبهوره اووښې

هاغه چې څوان به غوړ څونډے سر تور ترې نشو وے
اوس دَ هغه کمالهٔ نه بغله په سر توره اووښې

دَ نړیوال انسانیت علمبردارہ واورئ
بدل به ستاسو خواره مخواره دَ توره بوره اووښي

ستا لونګین پانړې باهو پېړوان اوګی او نته
شعرکوم ئې هسې نه چې دَ فوکلوره اووښي

دریابه ژبه مې له داسې وینا غوښته بنه دَه
چې پرې بې چرته شي سرے چې پرې دَ سوره اووښي

نېټه ۱، ۲۲ فروري ۲۰۰۲
شګي
(دلوے اختر ورځ)

* * *



زړه کړه پکار ده هم هنر پکار دے
خو دغه هر څه له خوسر پکار دے

د انتقام طریقې نورې هم شته
نه چې د شر جواب په شر پکار دے

چې پرې بنګلوټو له ګلان اوکړم
زما یوه پوله دوټر پکار دے

د سر د سترګو نظر نهٔ دے نظر
د زړهٔ په سترګو کښې نظر پکار دے

مونږ په خبو ستورې نه شو راوړې
مونږ له دَ بنې پوهې وزر پکار دے

چې دَ احساس دَ غرونو پاخې څنې
دَ بې حسۍ واورې له نمر پکار دے

امَن پسندو له پکار دے امَن
خو ترهه ګر له ترهه ګر پکار دے

دریاب به مونږ ه په فطرت مئين يو
مونږ له نختر، چينه او غر پکار دے

نېټه ۲۳ فروري ۲۰۰۲ء
شګه

(دَ لوئے اختر دریمه ورځ)

* * *



نرګسیت نه چې انسان را اوُځي
بیا ورته لاړې دَ آسمان را اوُځي

زهٔ چې دَ ذات په اٰئینه کښې ګورم
بلا خامې راته دَ ځان را اوُځي

رقیبان مینې سره دي تړلې
ګرې چې اوګې ځیګان را اوُځي

دا ځل دې خاځا بوځم کلي ته
خو چې غوزان او انګړان را اوُځي

کتونه سم وي اړولې نهٔ وي
اوس چې ججرې ته کله خان را اوځي

فرعونيت له نړۍ ورې په مخه
چې دريا بونه دَ ايمان را اوځي

نېټه ۱ ۲۶ فروري ۲۰۰۲ء
شګی



*

* * *

*





عقله دَ زړه پـه کوڅـه نـهٔ ورځـمـه
نور دَ ھغهٔ پـه کوڅـه نـهٔ ورځـمـه

دَ بـدو کلي مې پـره کـړه هـمـه
چرته دَ بنـهٔ پـه کوڅـه نـهٔ ورځـمـه

زما کـوڅې بانـدې دې هـم نـهٔ راځې
چې زهٔ ددهٔ پـه کوڅـه نـهٔ ورځـمـه

ځـم بـه پـه ډاګـه ډیګـلی کـه ځـمـه
لکه دَ غلهٔ پـه کوڅـه نـهٔ ورځـمـه

لکه دَ بنار بنده کوڅه شومه زهٔ
دَ بل کهاله په کوڅه نهٔ ورځمه

دریاب نېغ په نېغه زړهٔ ته ځمه
زهٔ دَ لېمهٔ په کوڅه نهٔ ورځمه



*
* * *
*

○



جوړه ځې دې نن بله بانه کړله
دا خو دې په خدائے ځې بنهٔ ونه کړله

ته ځې ورته څ اینه مخې شوې
ځان ته دې حېرانه اینه کړله

وخته تقدس دې دَرشتو اوسو
تا زما نه سازه زمانه کړله

څهٔ که حوادث پرې ماتوې غرونه
ما ورته هم اوسپنه سینه کړله

جنګ مې د ژوندون ځنې اونه ګټو
هسې مې خرابه پرې خانه کړله

څله کړې زما د وږ لوږې ګیله
ستا نه چې ځواني جوړه نینه کړله

راغله که دریابه زما شوه نوڅه
لاړله حالات و زما نه کړله







چا کاښاتو نه پرده پورته کړه
که تا د مخ نه لوپټه پورته کړه

د سینې خولې خندا دې اور اوکړو
زما د زړه نه دې لمبه پورته کړه

د چا د قتل اراده دې اوکړه
بیا دې په لاس کښې اینه پورته کړه

نوم ئې د ضبط راله پس پیاسلو
بیتې د ژوندي مې درانه پورته کړه

ستا زر زري ستر ګو ته ټینګ نهٔ شومه
پس له توبې نه مې پیاله پورته کړه

ما دَ نفرت خلاف قدم په قدم
دَ محبت یوه نعره پورته کړه

دریابه روح ته مې سکون اورسېد
چا ګل ګټو نو کښې تپه پورته کړه

*
* * *
*





ستا دَ مینې په خوږو ځې بهره ور شوم
که دریاب وومه جانانه سمندر شوم

ځان مې اوباڼلو دَ مینې جوارګه کښې
ته مې اوګټلې ځکه سر په سر شوم

وخت هغه وو چې به چاته یادېدمه
اوس خو لا زه دَ یادونو راهګذر شوم

دَ هر کار دَ خولې خوندونه مې خراب دي
دَ غمناکو شپو ویرژن غوندې سحر شوم

د لاهوت د رڼاګانو په تکل کښې
د ناسوت د غار د کومې نه بهر شوم

ستا د خیال سنګ پارس چې مې حاصل کړو
اول هیڅ نه وومه اوس د زرو غر شوم

د ریا رنګونه څاڅي ترې دریابه
ددې دهر د یارانو مرور شوم

*

* * *

*





دانګې تړې مې د ژوند نبضونو اوکړې
چې کلي ستا د ننګو سرونو اوکړې

سوده پس مې رنګه پنګه غېږ ته راغله
غزونې زما مړو رګونو اوکړې

د دردونو په صحرا کښې ئې پړه کړم
تجربې راباندې بسه وختونو اوکړې

جوړ مې زوړ په لاشعور کښې دماضي شو
لمغړې دې بیا تنکو یادونو اوکړې

لونګين نه ئې ګرېوان پورې اډنه رم
ما مــزلې دَ بلهـا کلــوزې اوکړې

اوس به چرته هم بد رنګ دريآبه نشې
دعاګانې درته سرو لاسـونو اوکړې



*

* * *

*





ستا دَ انکار جواب ته پاتې نهٔ شوم
بنهٔ شوه چې دې عذاب ته پاتې نهٔ شوم

ستا مینې نېغ جنت ته راوهِستمه
دَ فرشتو حساب ته پاتې نهٔ شوم

دَ سر لوړې معراج ته اورسېدم
دَ سر کوزې اداب ته پاتې نهٔ شوم

ځان مې حلال کړو دَ ارمان په چړه
خو دَ دستور قصاب ته پاتې نهٔ شوم

دَ فرشتو اُستاد ته پاتې شومه
ګرانه منبر محراب ته پاتې نهٔ شوم

دَ ملاکنډ په سر يې چغې کړلې
دَ ملاکنډ درياب ته پاتې نهٔ شوم





دَ کلي سترګې دې را واړولې
چې ښکلي سترګې دې را واړولې

خندګه به زړه لېونے کېږمه نه
پاکلي سترګې دې را واړولې

تا وې چې سترګې به دروانه ړوم
بیا ولې سترګې دې را واړولې

ښکلي دَ خلقو سترګې نهٔ ژاړمه
خو خپلې سترګې دې را واړولې

رقیبه موږه دَ نظره نهٔ کړې
شړلي سترګي دي راوړولي

په دریابونو دي لمبې بلي کړې
چې بلي سترګي دي راوړولي

چکیس



*
* * *
*



تا چې د خپل راتګ خبره کو نغلکه اوکړه
ما سره ستړې انتظار سمجو ته ځکه اوکړه

دغه په پسکې کښې تړلې ځو دانې د اُمید
وړم د ارمان بچو له نن مې ټکه پکه اوکړه

زهٔ هسې سپک کړم ستا د شوخې مینې شوخې ګناه
چې زما ذات هم مانه په جانانه کړکه اوکړه

د مار کلې په کنړو پروت پېزوانې ئې نهٔ پرېښودم
ځکه مې کلي ته بیا مخه له اټکه اوکړه

دَ ګل پہ برخہ دَ نسیم پہ غېږ کښې مخ اووینځہ
راشہ دَ ګلي دَ قطرې ژوندون نہ څکہ اوکړہ

ما چې دې شونډې وتہ کړې غوټې غوټې شونډې نږدې
تا دَ زخمې زخمې هوسې پښان تړیکہ اوکړہ

تا دَ دریاب دَ ژوند موره کړلہ سپېره رقیبہ
راغلې بابر غونډې دې دلتہ مبارکہ اوکړہ



*

* * *

*



دَ بنګلو په سینو کښې که دي زړونه کاڼي کاڼي
نو مونږ ه ګوري هم یو غرونه کاڼي کاڼي

څه هغه قسمتونه دي چې کاڼي جوړ وي ئ
څهُ مونږ یو چې زمونږ دي قسمتونه کاڼي کاڼي

زړګیه دومره هم مایوسه کېږه مه دَ بنګلو
توکیه هم کله کله سرهٔ ګلونه کاڼي کاڼي

دَ څنو دَ قبرونو خو خزې دَ کاڼي نهٔ وي
دَ څنو دَ مرمرو مزارونه کاڼي کاڼي

په ما باندې ښبې زهر د ترخو حقیقتونو
دا غوټې غوټې ژوند او دا وختونه کانې کانې

دریابه جوړ زما سنګسارولو له راغلې
دا خلق ګڼه ګونه دا لاسونه کانې کانې

(د ملګري اقبال شاکر په اثر کښې لیکلے غزل)

حکیس





څار په رڼښمو تندرونه ترم
ښکلیه چې ستا نه نظرونه ترم

دَ زړهٔ زخمونو مې اوبهٔ پټې کړې
غواړې دَ شونډو ټکورونه ترم

ګل منجرې دې دَ الفت فصلونه
زهٔ ترې ګېډې ګېډې غمونه ترم

دَ خیل احساس دَخوشبوئیو په مزې
ستا دَ ښائیست نن اکتونه ترم

بڼ دګوډګورو دے تپه شه پکښې
زهٔ دې په کوڼ اوربل ګلونه ترم

دَ خپل سالو نه راله پسکے راکړه
زۀ پرې دَ خوږ زړۀ پرهرونه ترم

چې دَ ښکلا ونې میوې اونیسي
زۀ به ترې خرنګې لاسونه ترم

رباب به روسته سورُوم دَمینې
لا خو دریابه پرې تارونه ترم



*

* * *

*



که انتظار راته غښتلې شپه ده
ما په لېمو کښې ګرځولې شپه ده

دا تا په زلفو کښې تړلې شپه ده
ما وې رڼې ولې ځنګېدلې شپه ده

ورځ مې لېمه ځکه نن خوړې د ورځې
بېګاه مې تو له شپه خوړلې شپه ده

ستا د خالونو ستورو غسل اووېست
په ما د قدر نازولې شپه ده

د لوند اوربل څاڅکې ئې اوکړه په ما
وېل ئې پاسه کنه تلې شپه ده

نن دې په سترګو ښکلو ومه سترګې
نن مې په عمر کښې موندلې شپه ده

ستا د رنګين ګل څوان په رنګ کښې ډوب يم
څه لونګينه شپه ده ښکلې شپه ده

زما د شونډو پار په شونډو لر کړه
څار په نصيب باندې راغلې شپه ده

زما جنته ستا نه څه اوتروم
نن مې د تا د واک په کلي شپه ده

اوس به دريابه شي سحر که خبرې
اوس مې ايله راپېرزولې شپه ده

* * *



چې دَ نسیم په کومنځ سر اړوي
خُنک به نظر ترېنه نظر اړوي

زۀ به تړې واوړمه خوږه ملګرو
ما نه به څوک هغه کافر اړوي

خوله مې زړګي غواړي له شوخې مینې
څه زوروَر دے ما په شر اړوي

ښۀ په جار ومه چې مئين يمه پرې
رقیب مې څۀ دَ لارې خر اړوي

مینې دَ ځړیکو په خیګ اوترلم
اوس مې دَ درد په سمندر اړوي

دَ محبت لېوني خپل وختونه
دَ زولنو په شرنګ اړوي

داسې دانه وانه ګودرته مه ځه
خوږې دَ شوخۍ دَ مازیګر اړوي

دَ نظر تېغ دې راته مه برجوه
دَ ژوند دَ تېغ نه مې جوهر اړوي

دَ زخم کر پېښې دریابه کوي
ښکلي زما دَ زړه دوتر اړوي

* * *





کله کله چې راياده شي په شپه کښې
ترسماري د دردونو شي په زړه کښې

چې د بنګلو د ستاييلو حق ادا کړم
برکت مې دې خدای واچوي په خوله کښې

د بلې د کشمالو کوډې کښې ګوره
هسې نه چې څوک دې اووينې په وره کښې

څومره خوند به وو په تګنه غرمه کښې
هاغه مونږ چې به يو ځاے شو په چينه کښې

نیم وړې له د چینې په ډوډه راشه
مخ ئې پټ کړو رو ئې اووې په تباره کښې

دَ ګل مخو طبیعتونه عجیبه دي
سړے نهٔ پړېږي دریابه په یوه کښې

چکیس



*

* * *

*





دَ شیشې په ګلاسونو به څه کړمه
په شیشه شیشه لاسونو کښې یُ څښمه

زما سترګې صحراګانې دَ تیارو شوې
ستا دیو نظر لیدو په طمعه طمعه

احاطه یُ په لفظونو چرته کېږي
ته چې راشې څنګه یمه څنګه شمه

ما دَ خدائے نه په تیارو کښې دا غوښتلي
خوله یُ زلفو کښې په پټه ګکه خورمه ۔

هغه وروړې واوړې شپه مې نه هېرېږي
هغه تا چې وې سحر شو پرېږده خمه

په ژړا شوه خه! ویل ئې دریابیه
زه چې دا خلې دَ کلي نه راتلمه

چکیسں

*
* * *
*





څومره چې ترې ځان ساتمه دومره پرې ور اوړمه
زړهٔ دَ محبت دَ الزامونو په شس اوړمه

نور به دَ ښکلا کهکشانونه رابرخېره کړم
والوتمه ' لاړمه په بره په نمر اوړمه

بیا مې پښې پولې دَ معصومانو حسرتونو شوې
بیا دې دَ یادونو دَ سکروټو په غر اوړمه

دا خو زما یو زړګی نهٔ دې راتللهٔ له سره چې
دومره به دَ ښکلو له چېړونو نه زر اوړمه

اودرېږمه اګودرډېږم غرېږو مې يوسې اوژاړم
زړه چې کله اوس په مازيګر په ګودر اوړمه

هاغه په دړومبې ځل چې مې ستا د ښدې خال ښکلو
ما وې که د ژوند د تاترې په کمس اوړمه

شور مې د بنګړو زړه غورځوي ګنې نو اومنه
نوره خو دې زړه درياب غږېږي ته در اوړمه

چکيس

* * *





نرګسیت ولې انسان کښې پروت دے
خو نه خو دَ بل سره احسان کښې پروت دے

دلته احساس دَ بل وګړې نشته
دلته کښې هر سړے په ځان کښې پروت دے

بدنام شو چغې وهې وائې خلق
واړه بدیت په مسلمان کښې پروت دے

دَ ملک وهنې قام وهنې فکر
په خان کښې پروت دے په دهقان کښې پروت دے

دَ خپل ماشوم زړهٔ درته څهٔ اووایم
دا لېونے خو په جانان کښې پروت دے

دَ تصوّر دَ سلسبیل په غاړه
زاهد په غېږه دَ غلمان کښې پروت دے

مونږه جامې دَ پرهرونو کړې
دریابه درد مو په درمان کښې پروت دے

نښتره ۱ مارچ ۲۰۰۲ء
شګئی

* * *





چې بارانونه دَ سپرلي مات شي
په هره پوله کښې بنګړي مات شي

خان له غم به دې باران اوکړي خو
خدايه زمونږه به غوږکي مات شي

په هغه ګلو خو مې زړهٔ غوښتېږي
چې دَ ډنډرونه ټنګي مات شي

لونده شوم لاړه ده ساده سړيه
پړونړه په سر به مې منګي مات شي

تنده دې داسې هرو ماته نشي
چې پکښې خاځا تندې مات تېي

پښتانهٔ دغسې خوارهٔ واره دي
لکه د هاره چې غمې مات شي

هسې نړۍ ته پښتون ځله وهو
آسمان به ځنګ په تبرګې مات شي

رقيبه ماته چې مسکی شي هغه
په تاکښې ولې مرچکې مات شي

دريابه زړهٔ درته دَ ځورو اوشي
چې په خندا کښې ئې سنګې مات شي

نېټه: ۳، مارچ ۲۰۰۲ء
چکېسر شانګله

* * *



زهٔ یُمه چې ته هلته تلهٔ غواړم
لږ دَخپل ځان سره لېدهٔ غواړم

دَ اور بالهٔ کمند دې لاسو کښې را
دَ ځ بسپوږمۍ ته دې خاته غواړم

ستا دَ شوګیر سَلُو وهلې یمه
ستا په تو ده غېږه کښې شپه غواړم

چې دَ باطن سینګار کوې ستې پکښې
ځانله یوه داسې اینه غواړم

چې په کردار کښې غزونې اوکړې
د داسې علم خوربدهٔ غوارم

ځکښې چې ځکښې تلمه ځان مې وژنو
اوس ئې قلار په مصلهٔ غوارم

دریابه خومره ترقي مې کړې
په کور پوره یم خو اورهٔ غوارم

نیټه ۵، مارچ ۲۰۰۲ء
چکیسر شانګله

* * *



دا ړچې په حال کښې پل په پل ژاړو
مونږ دَ ماضي په مړي تل ژاړو

ځان ته ښخيله کشالې جوړوو
بيا ځو وَ نورو ته ئې حل ژاړو

فکر دَ خپل کهالهٔ ذره نهٔ کوو
خو همېشه په غم دَ بل ژاړو

نهرې نهٔ ژاړو دَ ملک دَ ناوې
مونږ ئې تالا والا اوربل ژاړو

مونږ دَ ښېر خان دَ سر سوداګړي ده
هسې دَ مکر په کار ګل ژاړو

دریابه څنګه به منزل ته رسو
مونږ خو چې لږ اوګرو مزل ژاړو

نېټه: ۵ مارچ ۲۰۰۲ء
چکېسر







کره په تاکښې خو هم دا دَ ښتو دي
چې هوسېږي خو کاته دي دَ زمرو دي

تقدس زر پرستۍ دَ رښتو اوسو
که بابا دے که ادې ده دَ پېسو دي

نمر، سپوږمۍ، کهکشانونه، سيارې هم
چې جوړ لرې دَ پوهې دَ هغو دي

تل اَسمان وهي په تورو دَ خبرو
زما خلق دَ عمل نه دي دَ خولو دي

نښته کوم دي که یې څوک تنه را اوښي
چې سرونه یې وربوري په تنو دي

ښېښتانهٔ خو لا دَ څانه وتي نهٔ دي
نور قامونه دَ اسمان نه په وتو دي

چې ښېښتو ته سپک نظر کوي دریابه
علامې دَ ښېښتنو دَ ورکېدو دي

ښېته: ۱۶، مارچ ۲۰۰۲ء
چکېس شانګله



* * *





لږ که په فکر کښې بدلون راولو
نو تللے ځان به د پښتون راولو

موږ که په ځان کښې اګاهي راوېسته
موږ به د نن غېږ ته پرون راولو

موږ ه چې يو کاږه لړګي په بار کښې
څه به په نورو کښې سمون راولو

څو چې ځانو نه سترې شوي نه وي
نو خام خيالي ده چې سکون راولو

دَ تورتمونو خلاف جنګ به کوُ
هله په ژوند به سباوُن راوَلو

دریاب به ژوند له به معیار اوګټو
ځان کښې جوهر که دَ فنون راوَلو

نېټه، ۶ مارچ ۲۰۰۲ء
چکیسر شانګله







په ویښو کښې مې تګ کوو منه لار مې وهله
مرام ته رسېدمه او کنه لار مې وهله

اول خو ناپوهي وه ما وې زړه له ځانه ځمه
بیا پوهه شوم چې ځانته په ښته لار مې وهله

یو وخت دو چې خوانې وه د زړونو نه په ستغو غابښو
تلم چاق دومه له هر چا نه مېنه لار مې وهله

ستا غږ ته د ښکلا زما حېرانه تصوّر وو
که هر څو مره مې لار وهله نه لار مې وهله

دریاب ومه د سراو ښو نښتو الې باوجود هم
منزل پله په دوو ګام په سینه لار مې وهله

نېټه: ۶، مارچ ۲۰۰۲ء
چکیسر





کوئے شو فولاد یو موږ غرونه اړو
حالاتو له به ستړکو کښې اوړونه اړو

د سرو زرو فصلونه به را اوتوکیږي که خېرې
ګیا یو پرې د نوې کهول ذهنونه اړو

پراته لا د قسمت رحم وکرم ته نه یو موږ
همت کوو زیارکښ یو تقدیرونه اړو

احساس د انتقام له حرارت له دردہ اخلو
که زخم مو ورځې نو ترې پټونه اړو

تاریخ ته به دې سترګې وازې پاتې شي زمونږه
چې مونږ په سمندر باندې اسونه اړو

منم چې د بنګلا محل ته لار په ګکرو ده
خو مونږه لیونې به پرې ځانونه اړو

دریابه وجودونه مو د اوسپنې نه سخت دې
تبرونو د وختونو له مخونه اړو

نبته ۱۷، مارچ ۲۰۰۲ء
چکیسر

* * *





محبت کښې مې زړګي اوبه اوبه کړو
خو تر اوسه پوهه نه شوم چې مې وُ کړو

څو مره خوند به یُ اُف ماله راکولو
هاغه ماچې به ښه ښه او تابه نه کړو

مخکښې نه تللو دَ نیمې لارې ستون شو
بس په نه خبره ځان یُ راته جه کړو

څو به موږه په جذباتو لاهو کېږو
خدائے زده موږ دَ کړو نه عقل څه کړو

مجبورې مې په ضمیر باندې پېښه کېښوه
ځان مې چا کړه په زور باندې مېلمهٔ کړو

ما چې نه کړلو زما دَ چا به نشي
ما ځېګر کړلو ما زړهٔ کړو ما لېمهٔ کړو

چې پاسته پاسته لاسونه ئې ترې تاؤ کړهٔ
دَ دریاب ستړے وجود ئې برې دمه کړو

نېټه: ۷، مارچ ۲۰۰۲ء
چکېسر

* * *





جنون چې مې د ستغو تجربو نه تېروي
تکمیل ته مې د ذات د مرحلو نه تېروي

خرد مې ترې جار باسي ګني زه کله صبرېږم
جذبې مې د زغمین او زولنو نه تېروي

منه چې د باطن د سپېڅلیا حقیقتونه
سړے په یو نظر د زمانو نه تېروي

شاید چې څه رازونه منکشف مې شي د ذات
ادراک مې د هستۍ د تماشو نه تېروي

دَ درد دَ مسلسل اذیتونو په اورونو
الفت مې دَ حالاتو دَ لمبو نه تېر وي

دریابه دَ بنګلا دَ نازولي جبر خار
مئين دَ هوش اورونکو حادثو نه تېر وي

نېټه: ۸، مارچ ۲۰۰۲ء
چکیسر



*
* * *
*



ښکليه چې ځان دې مانه اوتښتوُ
دا خو دې ځان له ځانه اوتښتوُ

دَ سحر خنډه تبسم نه دې ځار
دَ عُمر غرېو دې رانه اوتښتوُ

دَ يوې زوره زور دې اوښودلو
خشم دې سم له خانه اوتښتوُ

شرنګ دې ښکرو له نيمه شپه کښې ورکړو
خوب دې زما جانانه اوتښتوُ

عامې درياب هغې ته څه ښکاريږي
هوش يې دَ ميان مُلا نه اوتښتوُ

۱۵، جون ۲۰۰۲ء

شکيه



په مسئله کښې مسئلې دې سرته چرته رسي
دَ ژوند بې سره کشالې دې سرته چرته رسي

لا مې دَ ذات دَ راپېژندګلوۍ کوړکې کلي ته
ماته زمانه فاصلې دې سرته چرته رسي

هاغه چې تلي ده پسې مې دَ وروکې ارمان
دَ زیل دَ زهرو کلکلې دې سرته چرته رسي

دَ زړهٔ کهالهٔ ته دَ نظر په تاترو تېر شم
څهٔ روح چېچونکې مرحلې دې سرته چرته رسي

هره لحظه مې د ماضي د ياد په اورکښې نيسي
د ټيامتونو سلسلې دې سرته چرته رسي

دريابه زړهٔ د محبت په ستړو مهٔ ستړوه
دا زاره چاودې معاملې دې سرته چرته رسي

۱۷ جون ۲۰۰۲ء
شګى



*
* * *
*





تا که نامه دَ جدایئ واخسته
دا دي ما لاس دَ ژوندُون واخسته

دَ وخت دَ جبر انتها ته گوره
په څو تکو ئې ملالئ واخسته

تا چې مي خنګ دَ خورو لاسو اوکړو
دَ خپله ځانه مي غاړې واخسته

نکه کېږي دَ ګلو پورته مي کړه
ما وې که غېږ کښې مي کړې واخسته

له بې وسۍ دومره را اوغورځېدم
د سپي د خولې نه مې دوړې واخسته

دریابه دغه زندګي وه لاړه
څه دلبرۍ څه دلدارۍ واخسته

۱۸ر جون ۲۰۰۲ء
شکي



*
* * *
*





دَغرهٔ په تړو کښې ګلونه تږي هغسې دي
زما دَ ذات تږي ارخونه تږي هغسې دي

سترګې په سترګو ښکلوم دَيوې مودې راسې خو
بيا مې هم سوې نظرونه تږي هغسې دي

په ککړو کښې وينې ښې تنده ئې نهٔ ماتېږي
دَ ښائستونو اسمانونه تږي هغسې دي

دا سرسېنۍ ذوق جمال مو يو ځائے نهٔ ښې اوبهٔ
ځکه موجل و هلي زړونه تږي هغسې دي

ستا دَ بنائُست سمندرونه په غور خُنک بهیږي
زما دَ عُمر ارمانونه تړي هغسې دي

تندې دَ نورو تنده غرو ماتوي دریابه
ولې پخپله دریابونه تږي هغسې دي

۱۹، جون ۲۰۰۲ء
شکي









زهٔ لا دَ درد له کوره وتے نهٔ یم
دَ خپل احساس له شوره وتے نهٔ یم

دا چې شعور مې زړهٔ کښې خارېږي
جوړ دَ جنون له اوره وتے نهٔ یم

مات شوے یم ټوټې شوے به یم
خو دَ خپل حُرت له سوره وتے نهٔ یم

چې دَ رقیب جواب کولې نهٔ شم
دومره خو هم له زوره وتے نهٔ یم

خدایه چې ورک نشم د ښار ګڼه کېنې
چرته له خپله کوره وتے نه یم

دریاب یم اووتم قابو له زوندہ
خو د الزام د توره وتے نه یم

۲۰ جون ۲۰۰۲ء
شګی



*
* * *
*





دَ خپل ضمیر دَ شوره چرته لاړ شم
ددې کافر هنګوره چرته لاړ شم

مور مې پخپله غېږ کښې هم نهٔ پرېږدي
نو آخر خپله وروره چرته لاړ شم

روح ته مې اورسېدو اوسوزېدم
دَ محبت دَ اُوره چرته لاړ شم

ړوند دَ سکون په یوه لحظه پسې شوم
ویم چې دَ خپله کوره چرته لاړ شم

دَ خدائے په چارو مې لاس نۀ رسېږي
دَ وخت دَ جور له زوره چرته لاړ شم

دریاب له لاړ به شم له هر څۀ نه خو
زۀ له قسمته سپوره چرته لاړ شم

۲۰ ، جون ۲۰۰۲ء
شلګې



*
* * *
*



دلته خو ګل بشه د فطرت د سور جامې کړي دي
"چا دي چې ګل د پسرلي د اور جامې کړي دي"

ته يې چې نه مې ياد وې چرته په هسې بانديې
زړه مې چې ما دې د الزام د تور جامې کړي دي

په ګل ګڅونو کښې پر کماله خاموشي قتل شوه
اوس زما ګلې هم د ښار د شور جامې کړي دي

دلته د هر څه امکان شته د تهذيبونو جنګ دے
دا عجيبه نه ده که ورور د خور جامې کړي دي

درياب به ما بانديې د هرې صدمې قرض شته دے
نه چې اختر له مې د غم نړور جامې کړي دي

۲۰ جون ۲۰۰۲ء

شګې

لبې د روح مې ورته اونیولي
شراب د چا د نظرونو څاڅي

سره لوپټه په ګلګون مخې رپي
کنه رنګونه د رنګونو څاڅي

هسې ځان څله لوندوې سله دره
شبنمه ریا دې له موخونو څاڅي

څانګې چې غبرګ منګې له نازه اوړي
خور به دې څاڅکې په خالونو څاڅي

دریابه دې تودې څپې د وخت
غم چې زموږ له غونو څاڅي

۲۱ جون ۲۰۰۲ء
شګه





څو مره چې راښکون لرې په سترګو کښې
دومره زړه چاؤدون لرې په سترګو کښې

زړهٔ د انتظار د شپې تیارهٔ یمه
تهٔ مې سباؤن لرې په سترګو کښې

نن خو ئې ښځې شعر کوے نشم
نن هسې مضمون لرې په سترګو کښې

مرګ که دې ښخښي له کړو بهو
یاره نو ژوندون لرې په سترګو کښې

زهٔ دې دَ خپل ذات په غرونو سرګړمه
څهٔ بنکلي جنون لرې په سترګو کښې

ما درياب دمه کړه سترے شوے يم
تهٔ سکون سکون لرې په سترګو کښې

۲۳، جون ۲۰۰۲ء
شګئ



*
* * *
*





دریاب یمه په ظرف د ممکنات کښې نه راځم
فطرت مې د غور ځنګ د ځپل ذات کښې نه راځم

د مینې په ټکرې باندې مې کته مقدر دہ
زه داسې جوار ګړیم چې بېلات کښې نه راځم

دا زه سپېره بدبخته یم تا نه کړموم ګله
دا ستا چې په نظر په التفات کښې نه راځم

بونیر او دیر ته او رمه په ځو د لوړو غرونو
ښکلا د ملاکنډ یمه په سوات کښې نه راځم

دا ما وړوکے کړے ځان پخپله دے ملګرو
نور خوګني زۀ په کائنات کښې نۀ راځم

دریابه دَ وجدان اودَ الهام نه رازینږم
ستا شعر دَ اورد په کیفیات کښې نۀ راځم

۲۴ جون ۲۰۰۲ء
شګه



* * *



زهٔ چې راتلمه لېونۍ زما نه نهٔ هېرېږي
ستا اجازت دَ ناخوالې زما نه نهٔ هېرېږي

اُ چې مې خواله کشمالو کښې پته پته راتلې
دَ خوشبوګانو بناپېرۍ زما نه نهٔ هېرېږي

سر چې دې کښېښودو زما په سينه غلې شولې
خوله کښې دې اونيوه کسۍ زما نه نهٔ هېرېږي

ستا دَ ملالو زر زرې سترګو نه سپينې اوښکې
راتلې بې واره په کوکې زما نه نهٔ هېرېږي

خدایه ددې نه چې راغلې نه وے
لکه په ما دَ لارُوي تېره شوه

دَ محبت سندره اوشوروه
دریابه برنده خاموشۍ تېره شوه

چکېسر
اګست ۲۰۰۲ء









دلته په هر لفظ مخونه زمانو وهلي
ځکه مهرونه خو په خولو باندې معنو وهلي

خدایه! باران دې چې د چا بلې ته اودرېږه مه
زما د کلي د هر کور غوړکي وینو وهلي

مونږ کښې دستار د شرافت هغه په سر تړي چې
چا چې سرونه بې ګناه وي له تښنو وهلي

زما د خلقو د پستۍ یوه وجه دغه هم ده
څوک د حسد په اور کښې سوي څوک کینو وهلي

موږ کښې به سوچ له کومې راشي او رڼا له کومې
موږ د بابا کاڼي په سر او په سينو وهلي

دا د تاريخ د جبر لويه الميه ده زموږ
چې ښتانه هم ښځې له ښتنو وهلي

دريابه دا زما خيالونه د مستئ کړي
کنه شراب د سلسبيل نه لږ ونو وهلي

۲۲ اگست ۲۰۰۲ء
چکيسر

* * *





برنده خاموشي دي له بارانه پس
غرېږي مې ښکلېدو سي له ژړانه پس

دومره بې قدري د مينې مه کوه
دربه شي ارمان گورے زما نه پس

دا سترگې به زه له ځانه اوباسم
دوئ که چاته اوکتل ستانه پس

ته خو زما روح ته کوزه شوې
ژوندکښې به مې څوک راشي دتانه پس

دغه دے عظمت دَ شس افت زما
زۀ چې شم پښېمانه دَ گناه نه پس

ما خو وې دَ نن نه پس به نۀ رلځم
راغلمه څه گورم دَ سبا نه پس

ښنۀ وختونه رابه شي اُمید لره
ښار راځي دریابه دَ صحرا نه پس

۲۲ اگست ۲۰۰۲ء
چکېسر

* * *



دَ کلي مېنځې کښې پخپل کور کښې سوزم
دَ تنهايۍ دَ شور په اور کښې سوزم

دَ روح لمبې مې له احساسه تاوُ دي
دَ ژوندانهُ دَ نوم په تور کښې سوزم

پرهر پرهر دَ وخت سکروټو سوے
پولئ پولئ يم په تکور کښې سوزم

دَ خپل برباد محبت زيل اوخوړم
دَ خپل برباد زړهٔ په پېغور کښې سوزم

زندګي لښ درياب اوسېزلم
ددې نه پسته به لاګور کښې سوزم

۲۳ اګست ۲۰۰۲ء

چکېسر



زۀ چې څۀ غواړمه نو هغه څۀ خونه راکوي
ماله سنګيا په ځائے هغه دَ کبينه راکوي

ما په جنت کښې ځان دَ پاسه دَ مقتل ليدلے
ماله به څوک زما د دغه خوب معنه راکوي

ژوندۀ ستا دا احسان په دواړو سترګو منمه چې
يوۀ حادثه راله غاړې له بله سينه راکوي

ما نه جنګ ولې د تهذيب دَ بقا پاتې شولو
زما ضمير ماله بېغور ماله طعنه راکوي

دَ محبت دَ بټ په غاړه مازیګر دے ناست یَو
پښېله لیې لیې خوري ماله نینه راکوي

دا دَ فطرت دَ وېش ستم دے کنه جبر دَ وخت
تاله په لاسو کښې قلم ماله رینه راکوي

دریابه تل چې ئې عطر ونه ورَول به په ما
لهم نن هغه راله دَسرو تیلو بوته راکوي

۳۱ اګست ۲۰۰۲ء
چکیسر

* * *



زما په روح باندې راخوره رانه لرې مه ځه
زما د زړه د درزا شوره رانه لرې مه ځه

غېږ کښې مې کښېنه سر مې کېږده په سینه ښکلیه
ما ته خوارېږه راګوره رانه لرې مه ځه

تاله هم ستا په تورو سترګو قسمونه درکوم
زما د دواړو سترګو توره رانه لرې مه ځه

د محبت په بڼ کښې دغسې ټپې شوروه
د ژوندانه د سرور سوره رانه لرې مه ځه

دومره پوره ده چې په يو کهاله کښې لږې وتې
مړ به شم زهٔ کور ے خو نوره رانه لږې مهٔ ځه

دا زهٔ درياب خو زندګي ستا په خوږو تېروم
دَچا الزامه دَچا توره رانه لږې مهٔ ځه

۶، اکتوبر ۲۰۰۲ء
جکيسں



* * *





بیا مې ماتې کړې توبې صبر تمام شو
بیا په ما څخې خورې شولې ماښام شو

بیا ئې ستا د تصور په بڼو کنم
بیا د زړهٔ د زخم پاترونه مې پام شو

د ریا په ملګرتیا کښې ئې پرېښنوم
خپل ضمیر راته په نعره لاړ کښې دام شو

زما ژوند چې عبارت وو . له تګ رو
ستا په غېږ کښې لږ دمه شو په آرام شو

دَ ښکلا دَ جادوګر نه تپوس اوکړئ
چې مې خنګه دا سرکشه زړګے رام شو

دَ نامې جامې خاوند وو محبته
دریاب لاړو ستا دَ لاسه نه بدنام شو

۸ ، اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکیسر









یو یو که دوه یو سره نه بیلیږو
یو بل سره یو سره نه بیلیږو

شر اوکړو جنګ اوکړو جهګړه اوکړو خو
بیا هم لمحه یو سره نه بیلیږو

بېلتون مو مینځ کښې سره دغسې دے
ګل او وږمه یو سره نه بیلیږو

وخته د جبر ډانګ دې مه ځنړوه
موږ خو اوبه یو سره نه بیلیږو

هسې ځان مه خوشحالوه رقیبه
څه که خفه یو سره نه بېلېږو

ساعت کښې بېل شو په ساعت کښې یو ځائے
لکه واړه یو سره نه بېلېږو

دریاب به زه او نازولے جانان
نمر او غاړه یو سره نه بېلېږو

۱۷ اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکېسر

* * *



چا وېل دا چې مې د زړه وتې ده
زما خو نن هم پسې خوله وتې ده

بېرته ژوندۍ راستنه شوې نه ده
پېغله چې دلته له کهاله وتې ده

څنګ به مې خاوره سره زر نه ټوکوي
د هر وېښته نه مې خوله وتې ده

د خود غرضۍ ساندې په درز کښې اورم
د ضمیرونو جنازه وتې ده

رقیبه خوله کښېږدي اوبه مه راځه
زما په دې باندې چمړه وتې ده

لغړ دے وړے دے خو لمېځے نه واڼې
د نر وګړي نه لښه وتي ده

ګل پاڼي تا دې ترې خدائے نه خبروي
په دریابي دې خټګه شېبه وتي ده

۱۷ ، اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکېسر

* * *





رقیبان مې څه بې وخته رابورې شوه
دا د نه سرې ځامن راته سرې شوه

اُف زما د صبر څنګ امتحان اخلې
کټ کبنې پرېوته خوره بنګړې بنګړې شوه

وخت مو څنګه استحصال کوې ملګرو
ګران د نوو نه څېزونه کباړې شوه

هر وګړے د خپل سپورې نه وېرېږې
نړۍ بنکار د نامعلوم اړې ګړې شوه

دَ اُلفت نخښې ته یو رانږدې نهٔ شو
حاسدان زما دَ لاسه سرغوړې شوه

دَ یارې په وېش کښې درد او غم ئې راکړو
وې دریابه هن! دا ستا اړې موړې شوه

۱۹، اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکېسر



* * *





وړوکے ووسه لوۓ شوم په سُور تل دَ حادثو
ژوندون مې عبارت دے له ازل دَ حادثو

دَ وخت په سرابونو کښې ئې سوے لولپه کړم
څهٔ تندې دَ غمونو او څهٔ جل دَ حادثو

دَ مينې دَ مرام غنچه زړګيه نسې نهٔ ده
ده لاړ دَ الزامونو او مزل دَ حادثو

بس تهٔ راباندې کړان ئې چې په سر دې بلا اخلم
دا نه چې اخستے نشم بدل دَ حادثو

قدرت مې عجیبه غونډې فطرت په ږ خه کړې
په لتمه د صدمو یم په تکل حادثو

ملګرې د راحت به درنه هېر شي په آسانه
ممکن نهٔ دهٔ چې هېر شي درنه مل د حادثو

ښکلا پرې د رنګونو قیامتونه دې شیندلي
راغلې دې دریاب له جوړ اجل د حادثو

۲۰ اکتوبر ۲۰۰۲ء
حکیمس

* * *





عقل مې تلے جوړ له سره ښکاري
خپله ژړا راته سندره ښکاري

يا خو ساده ده په څه نهٔ پوهېږي
يا راته ډېره زوروره ښکاري

څو نسله نور به لا بې علمه يو مونږ
دا راته هم د سوچ خبره ښکاري

په کړو وړو مې شروع اوکړله
د جنون تبه مې شپېره ښکاري

کلي ښاروونه خوري وطن وطني
تموله ښږه راته ښره ښکاري

دښنه درياب غمونو اوخوړلو
لسې خوشحاله دَ ښره ښکاري

۲۲ اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکيسر



* * *





دَ سوي لاس نه يم زياته ساقي
خدائے خبر دا ځواني به چاته ساقي

دَ پلار وهل دَ مور سپيره خبرې
غصه په ما اوباسي ماته ساقي

ته يې چې لوټې كوې زلفو سره
ګني ماران وايه څوک خوا ته ساقي

اجل دې راشي چې بې غمه شمه
ځله مې نور دَ ژوند ګناه ته ساقي

زړهٔ به پرې ځان شیندمه دغه شانتې
هغه دې زړهٔ کښې بنیرے ماتـه سـاقې

دَ زړهٔ په وران کلې کښې اوسې دریاب
ستا لېونے دے لارې تاتـه ساقې

۲۴، اکتوبر ۲۰۰۲ء
جکیس



* * *



ما زما په لغزشونو باندې نيسې
لېونی څوک په جرمونو باندې نيسې

د نمرونه په شيشو پټول نه دي
چې سپين لاس په رخسارونو باندې نيسې

په خندا کښې په شا لاړه شې کږه شې
ما له ورايه په اورونو باندې نيسې

د بنګلا کلي کښې لغسي خاني ده
مينان په بيګارونو باندې نيسې

دا دَ بنګلو چې زاهد په ځوړه اوسي
دا روڼې په اخترونو باندې نيسي

ستا نامه به ښکلو اخلمه جانانه
ما دې خلق په خوبونو باندې نيسي

دَ شپيانو مازغهٔ ښتته په کوپړو کښې
چې دریاب په زنځیرونو باندې نیسي

۲۶, اکتوبر ۲۰۰۲
چکیسر

* * *



موږ به تل هلته يُو ځي چرته ناست يُو
دَ جهالت دَ مړې سرته ناست يُو

دَ ږې حسې ژے دے نهٔ تو دېږو
ډډې په ډډې اوړو نمرته ناست يُو

څوک راته يو نه دوه وږلے نشي
دَ مرچکې په سټه شرته ناست يُو

پېځ دَ مرغۍ راوړه نړۍ په لټه
موږه کلونو دَ اينګړ ته ناست يُو

کور دَ تهذیب مو غلو دَ غرب لوټلے
هسې څوکۍ کوو کهنډر ته ناست یو

دَ رڼا فصل اخلي نور قامونه
دریابه مونږ دَ مالګي کر ته ناست یو

۲۷، اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکيس

*

* * *

*





آخر په څه رشته به ما سره پاتې کېدو
ما ډېر پاتې کوو خو هغه نه پاتې کېدو

ښتو بلا دې و اخلم خو قدمه را سره شو
حالانکې دے خو غځ په دروازه پاتې کېدو

منمه محتسبه ته هم ښه وے خو ما پوې کړه
زړه خنګه ترې را تلے شوم چې مې زړه پاتې کېدو

خو دے مې مصلحت هلته په ښو کښې چقولے
چې چرته پرې مقصد د ژوندانه پاتې کېدو

یو وخت وو چې به توره زما د اسې چلېده
آسمان به ورته هم کوته په خوله پاتې کېده

ما تل د اعتقاد زورېندې توري پرې ساتلې
ضمیر به مانه څرنګې اوده پاتې کېده

دریا به ستا د فکر رڼاې پکښې خوره شوه
کښې زمونږ د اکلې خو تیاره پاتې کېده

۲۷ ، اکتوبر ۲۰۰۲ ء
چکېسر



* * *



ستا په کتلو مې هر څهٔ کېښوده

ځنې چې په ځان باندې مې پښه کېښوده

ما دې لا نوم پوره اخستے نهٔ وُ

چا راله دواړه لاس په خوله کېښوده

په مېکده کښې مخامخ شو سره

شیخ دَ ورانهٔ لاندې پیاله کېښوده

دَ بې وسۍ به درته څهٔ اووایم

په هر ارمان مې یې څېره کېښوده

تا که ګلان په اور باله اوتو مبل
ما هم پګړۍ په سر کړه ګېنسوده

خدایه خسینې د جانان اوخېژي
ګوره يې په مرګ زما سره ګېنسوده

د يو مېلمه په سر نړۍ اوکتل
ما په زرګونو پښتانه ګېنسوده

د خېلې لارې يې دريّاب وانه ړو
وخت که يې غرونه په سينه ګېنسوده

۲۸، اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکیسر

* * *



زهٔ دَ بنائست دَ درنګ نه غېږ ډکووم
ستا دَ نظر دَ رنګ نه غېږ ډکووم

دَ محبت ملنګ یم غېږ تړې اخلم
زهٔ دې خپل قلنګ نه غېږ ډکووم

دَ نوې دور تقاضا ده څکه
دَ شر فساد او جنګ نه غېږ ډکووم

دَ تصور لاس مې خواره او نیوه
ستا دَ بنګړو دَ شرنګ نه غېږ ډکووم

دَ خپل دریاب لاره کنبې اودرېږمه
دَ جانانه غورځنګ نه غېږ ډکووم

۲۸، اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکیسر



خدائے خبر څهٔ تندر په دهٔ لوېږي
سم دَ سحره مې نن زړهٔ لوېږي

دَ ښار په شور کښې څنګ ژوندي دي خلق
ما ته خو کلي کښې مازغه لوېږي

وخت وو چې سر به په خبره لوېدو
اوس خو په توره باندې نهٔ لوېږي

زهٔ چې ئې اولیدم رپا پرې راغله
دَ شیخ دَ لاسه نه پیاله لوېږي

چوتېږي څې په بره نور قامونه
ورځ چې تېرېږي پښتانه لوېږي

د انتظار سورو لوتیلے یمه
د شوګیرو نه مې لېمه لوېږي

د زلفو تار د بڼو ستنې غواړي
تنهې د زړه د ګرېوانه لوېږي

دریابه لوېږې له نظره چې څوک
ښځه ده له دې نه چې له غرړه لوېږي

۲۹ اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکېسر

* * *





ځواني مې برندو هاډتو يوړه
د ژوند رڼا د غم تيارو يوړه

زما سپېڅلي اثاثه د کلتور
سمندر پوري لاړه غلو يوړه

ستا په خاطر نعره ناکړده د وخت
ما په سر سترګو په لمبو يوړه

زما ارمان تصوير کوي رسمونه
د رنګ اجزاء يې د لمبو يوړه

دَ زمانې سازونه شو بې سُره
دَ سوز خوږه ېې دَ نغمو يوړه

بيا يې سالو په مازيګر اوښرو
بيا چې ملکونه خوشبويو يوړه

ستا دَ بنايښت په نزاکت شوه خبر
مات شوې زړونه لوټکو يوړه

هاغه دَ سوچ ماده دريابه زموږ
خداے خبر څه دَ ککرو يوړه

۳۰، اکتوبر ۲۰۰۲ء

چکیسر

* * *



زړګے که مې اوس ځان له ګلالو راټولوي
وه دا به لکه پرخه په بڼو راټولوي

چې کر دَ محبت په للمو زمکو کوي څوک
فطرت دَ درد فصلونه په هغو راټولوي

ځواني ئې ده سحر چې ځنګه پاڅي نو اول
توتې له خپله کټه دَ بڼګړو راټولوي

پرېشانه خوشبوياني ستنولے نشي بيا
ګلونه ګريوانونه که هر څو راټولوي

ښکالو د پانړ ببونو ده ښرنګا ده د بنګړو
تنکۍ ښغلې دې وږې په غرمو راټولوي

ګستاخ دے د اوویا زره پردو دننه لاړ
نظر مې رنګینۍ د رنګینو راټولوي

دریابه خپر دې نشته که مې اوویلو حال
څونډې د لونګینو په ژړېدو راټولوي

۳۱ ر اکتوبر ۲۰۰۲ ر
جکیسر

* * *





سترګو دا مو څه په بلا واړوُ
زړهٔ مو راله ښه په بلا واړوُ

څوک ئې د صحرا په بلا مات کړلو
څوک ئې د کهالهٔ په بلا واړوُ

ورځې ئې رقیب له کړه مسُین اوږې
دا خو ئې لېوهٔ په بلا واړوُ

خیال مې چې له زلفو قرارے نهٔ کوُ
ځان ئې په تیارهٔ په بلا واړوُ

زړهٔ به مې په بوټي کښې بلاغوښته
وخت دَ ځان خوارهٔ په بلا وارو

هاغه چې دریاب ئې اخسته بَلا
نن هغه هغهٔ په بلا وارو

۳۱، اکتوبر ۲۰۰۲ء
چکیسر

* * *





زهٔ خو لا ځان ځارمه ځان ګورم
دَ ځان نهٔ پسته به جانان ګورم

چې دَ انسان راته معنیٰ را اوښـئ
دَ یوې مودې راسې انسان ګورم

دَ خرد کړه راتـه تللې ښکارې
چې دَ هستۍ ځیرې ګرېوان ګورم

دَ انسانې اقـدارو مړې کېږي
زهٔ ورته ښهٔ په اطمینان ګورم

چې د پښتو خلاف خبره اوکړي
زهٔ خو د چا د پلار ایمان ګورم

دریابه زړهٔ مې وینې وینې ژاړي
دا بد حالې چې د افغان ګورم

۱، نومبر ۲۰۰۲ء
چکیسر

*
* * *
*





راغه په تندو د پسرلو کښې کوت
جوړ چې دې خندا کړو په ننګو کښې کوت

نن ئې په جبین کښې کړبنې راغللي
چا وېل چې نه راځي شیشو کښې کوت

ستا د نفاست له نزاکت نه ځار
نه پرېږدي له خیاله په جامو کښې کوت

ځان ته په آئین کښې فکر وړي ده
جوړ ئې کړلو ګوتو په بارخو کښې کوت

تهٔ پګړی کړه په ماسپخين کښېږده
زهٔ پکښې کومه په نخرو کښې کوت

زهٔ درياب مېلمه دې يم مېلمه ته خو
نهٔ وې په وچو لو پښتنو کښې کوت

۱، نومبر ۲۰۰۲ء
چکېس



* * *





پاتې مجبورۍ کړو مانه کور کلے
څوک کښې پرېږدي له ځانه کور کلے

هر څۀ هېرېدے شي هېرېدے شي خو
نشي هېرېدے له چانه کور کلے

زۀ د لېونتوب په دښتو سر بنه یم
عقله غواړي څه زمانه کور کلے

اخله ئې غېږله دا به بنۀ وي خو
مۀ اخله د چا اسمانه کور کلے

زۀ خو جهنم مسافرې ګڼم
خدائیګو او جنت جانانه کور کړے

وُ پکښې دریابه جمعیت ږغوا
اوس خو لاړو شو پرېشانه کور کړے



۱ / نومبر ۲۰۰۲ء

* * *



عقل مې تلې جوړ له سره بنکاري
خپله ژړا راته سندره بنکاري

دَ ساندونه سندرې جوړونکے ..... علي خېل درياب ـــ شاعر دے ـــ خوسم تلَلے او سپېڅلے شاعر ـــ لکه دَ خپل نوم سوچه (اوريجنل) او کوتلے (پوخ) شاعر دے ـــ خپل رنګ او اسلوب لري - ښځي په ساهو ډول دَ غزل دَ روايت جوړلې ته خپل فکرونه په ډېر اخلاص او اعتماد پېښ زو کوي -
دَ تغيّل په ډګر دَ وخت نبض شناس او دَ خپلو ژبو دَ علم په پهکالو پوره شعر ليکي . په ډېره ښې ساختګۍ خپل علاقائي توري ' روزمرې او محاورې استعمالوي او خوندي کوي - که يو زړهٔ يې دَ کلفام نه نهٔ خوزي نو بل يې دَ قام نه نهٔ شو کېږي -

وخته دَ جيب ډانګ دې مهٔ ځنډوه
مونږ خو اوبهٔ يُو سره نهٔ بيلېږو

ساعت کښې بيل شو په ساعت کښې يو ځلے
لکه داړهٔ يُو سره نهٔ بيلېږو

اباسين يوسفزے
پېښور پوهنتون